# شين خالکه

شين خالی دهیواد د معاصر شاعر اولیکوال ښاغلی سمیع الدين افغاني

یوکیسه دی چې د ادب مینه والو ته یې وړاندې کوي

مننه اجمل اکبری

# لمړۍ برخه

شین خالۍ چې همزولو او دکلي اوسیدونکو ورته د نازه شنو خطاب کوه ، مور او پلار یې هغه په وړکتوب کې دتره ځوې زیړګل ته په نامه کړې وه ۰ زیړګل لاکوچنی وه چې مور اوپلار یې په حق رسیدلي وه نو د زیړګل تره دهغه تعلم ، تربیه همدارنګه اعاشه اوروزنه کوله او هغه ته یې د اولاد په سترګو کتل چې په رښتیا سره زیړګل د مور او پلار نشتوا لی کم احساسوه ۰

په شین خالۍ باندې هم زیړګل ډیر ګران وه او هغه ته به یې د خپل راتلونکو د خوشبختیو امید او د ژوند شریک په سترګو کتل ۰

زیړګل چې د شین خالۍ حسن ، صورت او کلیوالۍ ښیره همیشه په سترګو کې وه ،دهغې په لیدو به د میني ، محبت ، هیلو او ارمانو نو تنده ماتوله او همیشه به یې دهغه تر خولې داسې زمزه تر غوږو کیده ۰

ښه ښکلا ښه نازونه یې دی

تور اوربل شنه خالونه یې دی

شین خالۍ په رښتیا هم طبعي ښکلا لرله چې د کلي په خورلنډو او د کلي د اوسیدونکو لپاره د میني ،محبت او احترام نمونه وه ،دهغې ښکلې ښیره ،توري بادامي سترګې او دنازکتل په زیړګل خاص اثر اچوه چې بیا کله کله به یې د هغې په لیدو د ځانه سره داسې زمزمه کوله ۰

چې کتل کړي په ناز لکه حوره

ښکلی مخ یې ځلیږی له نوره

شوخ نظر سترګکونه یې دی

تور اوربل شنه خالونه یې دی

او کله کله به یې دا سې ویل۰

چې له ورایه په ناز ناز کتل کا

په زړګي مې د غشو ویشتل کا

جـــادوګـــر منترونه يې دي

تور اوربـل شنـه خالونه يې دي

د شين خالۍ په تندي ،زنې او اننګو کې ښکلي طبعي شنه خالونه وه ،که څه هم هغې ددې شنو خالو ارزښت دومره نه احساسوه خو دهغې جګې ونې او د شنو خالو ښکلا ځانله رنګ او خوند ورکړی وه چې زيړګل به هغه داسې اظهاروه٠

جګه ونـــه شمشاد يې قامت دی

ده مغروره شاهين يې صفت دی

نـــاز ادا فـــريـــبونـــه يې دی

تور اوربـل شنـه خالونه يې دی

او په اخر کې به بې خپل د مينې سندره داسې ختموله ٠

افغاني حسن جوړ شنو خالو دی

چې يې وړی زړګی په پلمو دی

پر اتـــه زړه کې غمونه يې دي

تور اوربـــل شنه خالونه يې دي

زما هم چه د زيړګل زمزمو ته پام وه او د زړه په غوږو مې اوريدلې د هغه ټولې زمزمې را ټولې او د لاندې شعر په څير مې پيل او زيړګل ته ډالۍ کړې ٠

شين خالۍ

څـــه ښکلا څـــه نازونه يـــې دی

تور اوربـــل شنـه خالونه يې دی

جګه ونـــه شمشاد يې قامت دی

ده مغروره شاهین یې صفت دی

نـــاز ادا فـــریـــبونـــه یې دی

تور اوربـل شنه خالونه یې دی

چې کتل کړي په ناز لکه حوره

ښکلی مـــخ یې ځلـیږی له نوره

شوخ نـــظر ســترګکونه یې دی

تور اوربـل شنه خالونه یې دی

چې لــه ورایه په ناز ناز کتل کا

په زړګي مې د غشو ویشتل کا

جـــادوګـــر منترونه یې دي

تور اوربـل شنه خالونه یې دي

افغاني حسن جوړ شنو خالو دی

چې یې وړی زړګی په پلمو دی

پر اتـــه زړه کې غمونه یې دي

تور اوربـــل شنه خالونه یې دي

# دوهمه برخه

شین خالۍ ته د شنو نوم په اوله کې دومره په زړه پوري نه ؤ ، خو هغه پدې پوهیده چې کلیوال هغه د نازه پدې نوم یادوي نو چې کله کله به زیړګل ورته د شنو خطاب کاوه هغې به د زیړګل په اواز کې د مینې او مـحبت احساس کاوه . شین خـالۍ د موراو پـلار یوا ځیـنۍ لـور وه چې هـغه یې ډیره نازوله او طبعي پسې به یې ګرزیدل .

هغې د کلیوالي سینګار سره خاصه علاقه وه همدا چې بنجاره به د کلي په کوڅو کې په نارو سرشو نو مورته به یې په خواږه اواز کې ویل .

موري بنجاري ماما راغلی دی او د مورڅخه به یې د بنجاره نه د اخیستلو پیسی ترلاسه او د کلي د نورو همزولو سره یوځای د بنجاري مـامـا نه د سینګار شیان رانیول .

شین خالۍ د بنجاري مـامـا نه چارګل ، پازیب ، سیـخکونه ، دنداسه ، عطرونه او د کلیوالي هرډول د سینګار شیان خوښول او مورته به یې داسې زمزمه کوله .

موري بنجاره مـامـا راغلی دی

نورشیان یې ډیر دي دا پایزیب یې څومره ښکلی دی

موري بنجاره مـامـا راغلی دی

په رښتیا هم چې کله به شین خالۍ په کلي کې تېـریده نو خوشبویي به د کلي په کوڅو کې ترې په ګډاوه ، رنګ رنګ سیخکونه یې په اوربل قطار، سترګې په کجلو تورې او د پایزېبو شرنګهار یې د لرې اوریدل کیده . چې هغې به د بنجاري په راتـګ د مور نه د پیسـو د ترلاسه کولو لپاره داسې بهانې کولې .

موري پيسې راکه چې پايزيب مې ډير خوښيږي

رنګ رنګ سيـــخکونه په اوربــل مې هوسيږي

عطر شام پاريـــس مې په دمـــاغ ډير ښه لګيږي

نقدی پيسې نه وی ماما پور پـــه ځان منلی دی

موري بنجاره مـــامـــا راغلی دی

شين خالۍ په کليوالي سينګارکې د کــلي د نـورو خــورلنـډو ښخه مخکې وه ، د هغې به هميش لاسونه په نګريزو سره وه ،ښکلې تتکۍ به يې په سپينه تــنده بـليده او د سرو زرو چارګل به يې په پوزې ګرزاوه ،د هغې به هميشه په دنداسې شونډې سرې او غاښونه سپين وه اوله ډير ذوقه مورته داسې ويل ۰

اخـــلم دنداسه چـــې دنداسه مې ډير خوښيږي

سری شونډی چې ګرځم نو اشنامې خوشحاليږي

تورې تورې سترګـــې پـــه کجلو ښه ښکاريږی

سرو زروچـــارګل ماما پـه برجب کې ساتلی دی

موري بنجاره مـــامـــا راغلی دی

شين خـــالۍبه دمـــوراو هـــمزولـــو سره د زړه رازاو هيلې داسې شريکولې ۰

ځان چې مې سينګار کړه بيا نو ځمه د ګدر په لور

مورې د همزولو سره نن د ماز ديګر په لور

ډير به شم خوشحاله چې د يار شم د نظر په لور

اچوم ټکريی چې افغاني کلتور مو ښکلی دی

مورې بنجاره ماما راغلي دی

زما کليوالي شعر چې ددې پاکې او سپيڅلې کليوالي مينې او ورځنۍ کړو وړو څخه يې الهام اخيستی دی د زيړګل او شين خالۍ د ساده او بی الايشه ژوند په وياړ جوړ او د وطن خوږ ژبي سندر غاړي ښاغلي طاهر شباب ته وسپاره چې ښاغلي شباب بيا د هغه په ښکلي غږ او کمپوز کې داسې ښکلی سندره ترې جوړه کړه چې زمونږ د هيواد والو د توجو وړ ګرزيدلې ده ، ددې شعر بشپړ متن تاسی درنو لوستونکو ته په لاندی ډول ډالۍ کوم:

بنجاره ماما

نورشيان يې ډيردي دا پايزيب يې څومره ښکلی دی

مورې بنجاره ماما راغلی دی

مورنه پيسې غواړي چې پايزيب يې ډير خوښيږي

رنګ رنګ سيخکونه په اوربل يې ھوسيږي

عطرشام پاريس يې په دماغ ډير ښه لګيږي

نقدی پيسې نه وی ماما پور په ځان منلی دی

موري بنجاره مــامــا راغلی دی

اخــلي دنداسه چـــې دنداسه یې ډیر خوښیږي

سری شونډی چې ګرځي نو اشنا یی خوشحالیږي

توري توري سترګـــې پـــه کجلو ښه ښکاریږي

سرو زرو چــارګل ماما پــه برجیب کې ساتلی دی

موري بنجاره مــامــا راغلی دی

ځان چې یې سینګارکړه بیانوځي نوردګدرپه لور

موري د هــمزولــو سره نـن دمـــازدیګر پــه لور

ډیربه شي خـــوشحاله چې دیـارشي دنظر پــه لور

اچوی ټکریې چـــې افغاني کلتوریې ښکلی دی

موري بنجاره مــامــا راغلی دی

# دریمه برخه

د شین خالی پلار د کور تر څنګ یوه ښکلې بڼ جوړ کړی ؤ چې د کلي دلوېي بیالي څخه یې یوه وړه بیاله ورته ویستلې وه کوم چې دهغې نه به یې د بڼ د حاصلاتو د خړوبولو لپاره استفاده کوله او همدا رنګه د باغچې په مینځ کې یې دا بوټې درولې وه کوم چې ددې بیالې په اوبو څرخیده

چې دهغه د پاسه یې دا غزو کوټنی جوړه وه نو چې کله به یې دا غزو په کوټنی او به وشیندلې، پکې به مرتوب او تازه هوا هرې خوا شړله چې په اوړي او ګرمۍ کې د ناستی او د ګرمیو څخه د خلاصون مناسب ځای ګڼل کیده ۰

په بڼ کې رنګارنګ ګلان لکه سره او سپین ګلاب ، نرګس ، شبو ، رامبیل ، چمبېلي، کشمالې او نور و ښایسته ګلانو سر بیره ترکاری لکه تور بادنجان ، بینډی ، رومي بادنجان ، پالک ، ملۍ ،نوش پیاز ، ترائي او ډیر نور مختلف حبوبات او د کور ضرریات کرل چې زیړګل به دهغو څخه ځارنه کوله ۰

زیړګل د درس او تعلیم تر څنګ د تره سره د کرنې او مالدارۍ په برخه کې پوره لاس ورکاوه ، هغه چې کله به د ښوونځۍ څخه فارغ شونو څمکو د خړوبولو او د څارویو په روئنې به بوخت ؤ ۰

زیړګل د زمینداری په برخه کې د تره سره اوږه په اوږه کار کوه ، د مځکې په اړولو لکه ماله ، قلبه او ابولګولو کې یې د بزګر سره مرسته کوله ۰

شین خالۍ چې په خپل سینګار مینه وه یو ورځ زیړګل ته چې د باغچې په سمبالو بوخت وه داسې وویل۰

زیړګله دیره مده وشوه چه د بنجاري پته نه لږېږي ۰

زیړګل چې په باغچې کې په خپل کار بوخت ؤ شین خالۍ ته یې وکتل او بیرته په خپل کار بوخت او په جواب کې ورته وویل ۰

بیا د ې د کوم سینګار شوق په سر کې راغلی دی ۰

شین خالۍ په جواب کې ورته وویل۰

ته نه ګورې چې لیچې مې تشی دی او زه د زرګر د دوکان نه د نو جامو لپاره پاولي غواړم ۰

زيړ ګل سر ورته وښوروه او ورته يې وويل٠

سمه ده سبا له خيره د مور نه دي اجازه اخلم د زرګــر دوکان له دي بيايم او بيرته په خپل کار بوخت شو ٠

زيړ ګل ته د شين خالې د ا هيله ډيره خوندوره وبريښيده او له ځانه سره يې داسې زمزمه کوله ٠

مــانـــه د زرګـــر د دوکـــان

خيـــالي پـــاولـــي غـــواړي

سپينی ليـــخې تشــــې ګرځي

ليلا ځمانه شنه بنګړي غواړي

سبا کله چې زيړ ګل د ښوونځی خخه راستون شو نو د شين خالی پلار د روغبړ نه وروسته ورته داسی ويل٠

! زيړګله ځويه

زه د يو ضرور کار لپاره ښار ته روان يم او نن ځمو ږ د اوبو وار دی هيله ده چې د بزګر سره د ابو په لګولو کې مرسته وکړې او پام دې وې چې خاروی هم درنه وکې يا تږي پاته نشې ٠

زيړګل چې د شين خالی سره د زرګر ددوکان وعده کړې وه او دبلې خوا د تره دخبری نه تيريدل هم ورته ګرانه وه په جواب کې ورته ويل ٠

سمه ده تاسو بيغمه اوسې زه کارونه سمبالوم ٠

شين خالی چې د پلار او زيړ ګل خبری واوريدې خوا بدی بيرته د کلا انګړ ته ننوتله زيړ ګل د شين خالې په تنډه پوه شو ورسته يې ورته وويل٠

شين خالی ته مروريږه مه، سبا به له خيره وخته تا د زرګر دوکان له بيايم ٠

کله چې ماښام زیړګل د کارو څخه فارغ شو نو د کاکا ناوې نه چې زیړ ګل به دمور مینه پری ماتوله د سباورخې دشین خالۍ دزرګرددوکان دتګ اجازه واخیسته اوسبا دواړه د زرګر دوکان په لورې روان شول چې په لاره کې زیړ ګل د ځانه سره داسې زمزمه کوله ۰

اشـــنا ځما نه مرورده

د لاس بنګړی می خوړ اشنا په بی صبری غواړی

سپینی لیــخې تشـــې ګرځې

لیلا ځمانه شنه بنګړي غواړي

نو کله چې دزرګر دوکان ته ورسیدل نو زیړګل زرګرته داسې اظهار وکړ ۰

زرګره نقد ی روپی واخله

مانه اشنا د لاس بنګړی په خپل مرزی غواړی

سپینی لیــخې تشـــې ګرځې

لیلا ځمانه شنه بنګړي غواړي

ورسته بیا زیړګل په ډیره مینه داسې زمزمه کوله ۰

بنګړی دیار په لاس کی خوند کړی

په سپین مړوند د بنګړو شرنګ ښکلی ځوانی غواړی

سپینی لیــخې تشـــې ګرځې

لیلا ځمانه شنه بنګړي غواړي

ما هم د زیړګل د زړه خبری د شعر په ژبه پیل او محترم صدیق شباب ته د یو ښکلې کمپوز لپاره ورکړ چې نن سبا به دا ښکلې کمپوز زموږ د هیوادوالو د توجه وړ وګرزي چې شعر بې په لاندې ډول دی ۰

شنه بنګړی

مـــانـــه د زرګـــر د دوکـــان

خيـــالـــی پـــاولـی غوا ړی

سپينی ليـــخې تشـــې ګرځي

ليلا ځمانه شنه بنګړي غوا ړي

اشنا ځما نه مرور ده

د لاس بنګړی می خوړ ا شنا په بی صبری غوا ړی

سپينی ليـــچی تشی ګـــرزی

ليلا ځمانه شنه بنګړی غوا ړی

زرګره نقد ی روپی وا خله

مانه اشنا د لاس بنګړی په خپل مرزی غوا ړی

سپينی ليـــخې تشـــې ګرځي

ليلا ځمانه شنه بنګړي غوا ړي

بنګړی د يار په لاس کی خوند کړی

په سپين مړوند د بنګړو شرنګ ښکلی ځوانی غوا ړی

سپينی ليـــخې تشـــې ګرځي

ليلا ځمانه شنه بنګړي غوا ړي

# څلورمه برخه

زیړګل چې د شین خالۍ په کــلیوالي حســن او سینګار زړه بایللی وه ، تل به یې د هغې په مینه کې کله کله ښکلې شعـــرونه او په زړه پورې کمپوزونه جوړول ، خوږې سندرې به یې زمزمه کولې او ښه شاعرانه طبعه یې درلوده ، هغـــه د ټنګ ټکـــور سره ځانګـــړې مینه درلوده او د موسقې د آلاتو په غږولو کې یې خاص مهارت درلود ، ډیر خوږ رباب او ستار یې غږاوه او په زړه پورې بګتۍ ، لوبې ، چاربیتې او غزلونه یې کمپوز کړې وې نو تــل به په خوښــیو ، اخـــترونو ، نوی کال او د کلي په ښادیو کې ځوانان په حجره کې راټولیـــدل او د ټنګ ټکور او خوښې مراسم بـــه اجرا کیده ، زیړګل به ستار غږاوه او د کلي د ناپې ځوی مـــیراجانې بـــه د منګي او کاسې څخه داسې خوږ اواز پـــورته کـــاوه چې شاو خوا د کلي ځوانان او د ساز او آواز مینه والو به ښه خوند ترې اخیست ٠

د زیړګل سندرې د هغه دزړه سندرې وې همدا وجه وه چې د هغه د ســـندرو مینه وال نه تنها د کلي او سیدونکي بلکې په سیمې کې د زیړګل د نامه سره خلکو پیژند ګلوی لرله٠

زیړګل به کله کله لکه ګلا جان استاد امــسا په لاس کړه د ستار او منګي سره به یې داسې ښیاسته لوبې ، بګتۍ او دګلا جان استاد پیښې کــولې چې په رښتیا بـــه د ټنګ ټکور نه ورسته د کلیوالو روحیه بله او د خوښې احساس به د کلي په او سیدونکو کې تر سترګو کیده ٠

شین خالۍ هم د زیړګل په مینه مسته او دزیړګل د پام او نظرد جلبولو لپاره خپل کلیوالي سینګار ته خاصه پاملرنه لرله ،هغې دلښته په شان جـــګه ونه او د کوترې په شـــان د پنجو په څوکه تګ او رفتار در لود چې زیړګل به کله کله داسې ویل ٠

د کلی مینځ کې د پنجو په څوکو تله شین خالۍ

لکـــه کـــوتـــره مې د ورایه ولـــیده شین خالۍ

زیړګل چې د شین خالۍ دلارې تګ او دهغې کلیوالي سینګار او نزاکتونو تراغیزې لاندی راغلی وه ، خپل د سترګو لیدلی حال د اسې اظهار وه ٠

د سیخکو کتار یـــې جوړ وه د اوربلـــه ځینې

په یو نـــظریی زړګی ویوړه د ګـــوګله ځینې

په سرو منګلو يې لاس تيرکړه دکاکله ځينې

په هر قدم کې لکه لښته ماتيده شين خالۍ

لکه کــوتره مې د ورايه ولــيده شين خالۍ

شين خالۍ به تل د خپلو همزولو سره ګډر ته تله او کورته به يې د چښاک پاکې اوبه راوړلې نو چې کله به د اوبو راوړلو څخه فارغه شوه ،بيا به د خپلو خور لڼو سره په چکر شوه چې زيړګل به داسې زمزمه کوله ۰

خپلو هــمزولو سره وتــې په چکروه نه

ښکلى موسم د پسرلي او مــازيګر وه نه

د پلو لاندې پــټ کاتــه يې په هنر وه نه

د نجنو مينځ کې لکه شمعه بليده شين خالۍ

لکه کوتــره مې د ورايه ولــيده شين خالۍ

او په اخره کې زيړګل د خپلې مينې سندره داسې ختموله ۰

يو يې په غاړه سورکميس ګل بخمل وه نه

پـــه جګـــه پوزه د چارګل يې جلوبل وه نه

دا خوشبويي چې په ګډا ترې د سنبل وه نه

په افغاني لباس کې ښکلې ښکاريده شين خالۍ

لکه کوتــره مې د ورايـــه ولــيده شـــين خالۍ

ما هم د زيړګل د مينې ، ژوند ، هيلو او ارمانونو احساس راټول او په لاندينې سندريز شعرى بڼه کې تاسو د شعر او ادب مينه والو ته ډالي کوم ۰

کليوالـه جلۍ

د کلى مينځ کې د پنجو په څوکو تلله جلۍ

لکــه کــوتــره مې د ورايه وليدله جلۍ

د سيخکوکتار يــې جوړ وه د اوربله ځينې
په يو نــظريی زړګی ويوړه د ګــوګله ځينې
په سرومنګلو يې لاس تيرکړه دکاکله ځينې
په هر قدم کې لکه لښته ماتيدله جلۍ
لکــه کــوتــره مې د ورايه وليدله جلۍ

خپلو هــمزولو سره وتــې په چکروه نه
ښکلی موسم د پسرلي او مــازيګر وه نه
د پلو لاندي پــټ کاتــه يې په هنر وه نه
د نجنو مينځ کې لکه شمعه بليدله جلۍ
لکــه کــوتــره مې د ورايه وليدله جلۍ

يو يې په غاړه سورکميس ګل بخمل وه نه
پــه جګــه پوزه د چارګل يې جلوبل وه نه
دا خوشبويي چې په ګډا ترې د سنبل وه نه
په افغاني لباس کې ښکلې ښکاريدله جلۍ
لکــه کــوتــره مې د ورايه وليدله جلۍ

# پنځمه برخه

زیرګل د شین خالۍ په پاکه مینه ډېر خوشـــاله او هغې ته بـــې دخپل راتلونکې ژوند د ترخو او

خوږوشیبو د شریکې په سترګو کتل او پدې فکر کې وه چی څنګه د واده سرشته ونیسې او خپله معامله راټوله او خپله کوژدنه په خپل کاله کړې .

که څه هم څو وارې زیرګل دا خبره د شین خالۍ د مور سره شریکه کړې وه ،خو د هغې څخه بې داسې جواب ترلاسه کړی وه .

زړګله زویه .

مور او پلار دې خدای وبښه ، ته پوهیږې چې شین خالې هغوۍ تاته په وړکتوب کې په نامه کړې وه ،اوس شین خالۍ ستا امانت دی زه او اکادې په دې برخه کې کومه ستونزه نلرو خو خبره داده چې .

زیرګل دشین خالۍ مور ته مخ راواړوه اورته بې وویل .

نو څه خبره ده کاکا ناوې؟

دشین خالۍ مورخپلو خبرو ته داسې ادامه ورکړه .

ګوره زیرګله ځویه، ته پدې پوهیږې چې ته دې په اکا اوپه مورډېر ګران بې ، مورنارینه اولاد نلرو او مورته د اولاد حیثیت لرې ، مورډا هیله لرو چې ته د پوهې او تعلیم خاوند شې اوکله چې درسو نه فارغ شوې که د خدای رضا وه بیا به د واده سرشته درته ونـیسو ، ته پدی برخه کې هیڅ تشویش مکوه او خپلو درسو ته دې پام ونیسه چې په تعلیم کې د همزولو نه بیرته پاته نشې .

زیرګل ته هم د اکا فیصله ښه برېښیدلې وه او همدا وجه وه چې په ډېره ښه درجه بې د دولسم ټولګې د فراغت شهادت نامه ترلاسه کړه .

کله چې زیرګل د دولسم ټولګې څخه فارغ شو ، تــره بې دزیرګل فراغــت هغه ته مبارکې وویله او دلوی خدای شکربې ادا کړ چې دهغه هیله کوم چې زیرګل دتعلم او پوهې خاوند شې تریو حده تر سره شوه .

د زيړګل پام  داوس لپاره ددرسنو څخه فارغ او د کروندګرۍ په کارونو مصروف وه ،خو سره لدې کله کله د کانکو دازموينې لپاره به يې په خپل پخوانۍ درسونو مرور کاوه او د فراغت په وخت کې به د رياضي ، کميا معادلې له ځانه سره حلولې او دمکتب د دورې نور مضا مين يې هم لوستل٠

څه مده ورسته زيړګل خپل د ښوونځې د دورې همصنفيانو ته په خپله حجره کې د ميلمستيا بلنه ور کړه ، د ښوونځۍ دوستانو  هريو دتعليم ددورې خــپلې خاطرې خوړو او ترخو شيبو کيسې کولې او د ليسې د دورې د فراغت څخه يې خوښي څرګندوله ٠

د دوۍ کيسې او  د زړه خواله تر ناوخته دوام وکړ ، په اخر کې د زيړګل يو نژدې دوست د هغه سره داسې پوښتنه شريکه کړه ٠

زيړګله ٠

څه تصميم لرې په همدې تحصيل قناعت کوې يا که غواړې چې تحصيلاتو ته دې ادامه ورکړې ؟

زيړګل په جواب کې ورته وويل ٠

ډيرې موهمې مسلې ته مو اشاره ورکړه ، ماپدې برخه کې کوم قاطع تصميم ندې نيولې ځکه د لوړو زدکړو امکانات يوازې په لويو ښارو کې امکان شته ، خو په هــر صورت کــې زه تصميم لرم چې د کانکور ازموينه ورکړم ، وګورم چې روزګار موږسره څه کوې دبلې خوا اکا مې هم دا نظر لرې چې زه بايد خپل تحصيلاتو ته ادامه ورکړم ٠

صرف يو مشکل شته که چيرې زه د تحصيل لپاره مرکز ته لاړ شم دلته به د کورنې د سرپرستۍ مسله څنګه شې ، اکاته هم هغه د ځوانې قوت ندی پاته د بلۍ خو د شين خالې څــخه لرې کيدل هم ګران دي ،په هر صورت يو ځل د کانکور ازموينه ترسره شې وګورو چې قسمت او نصيب مــو کوم لور ته بيايې ا و څه راسره کوې٠

شين خالۍ هم د زيړګل د مساپر ي ترفداره نه وه او د زيړګل د جدا يې توان يې په خپل وجود کې نه ليده ،هغې به هميش د مور سره دا ويل ٠

زيړګل زموږ د کار سرۍ دې خدای دې ژوندی لرې تل د پلار سره د دخمکو او مالداري په کارونو کې ښه مرسته کوې ، زموږ جوړ او ناجوړ ټول په هغه دي خداې دې د هغه سيوری لــه موږد سره نه کموې ٠

زیړ ګل چې د شین خالې په مینه او انتظار کې شپې او ورځې تیرولې، د هغه په یاد به یې کله کله د زړه د سوزه داسې د مینې او محبت زمزمه کوله.

راشـــه چې سپرلی دې شـم ګلـزار دې شم
راشـــه چې د بدې ورځې یار دې شـــم

ستـــا د پـــاکې مینې محبت کې یار
ژوند شمـــــه وږمه شمـــه بهار دې شم

زیړ ګل د خپلې پاکې مینې په بریالیتوب متمئن وه او داسې به یې ویل.

نه شتــــه بلــــه لار ، نه بل تدبیر چیرې
راشـــه چې مرهم دې شــــم قرار دې شم

ته ما ته په مینـــه مینــــه وګوره
زه دې سره لمبـــــــه شمه انګار دې شم

هغه د خپلې پاکې مینې او اخلاص اظهار داسې کاوه.

مـــا سره جــــذبه د ه محبت زړه کې
راشـــه چې کاکل دې شم سینګار دې شم

اخلاصــــــه سره خــــوند کوي مینه د
راشــــــه چې د مینې وفـــا دار دې شم

زیړ ګل چې د شین خالۍ جګه ونه ، هسکه غاړه اود پایزیب شرنګهار زړه وړی وه نو په اخر کې به یې د خپل دمینې سندره داسې ختموله.

هسکـــــه غاړه زیب لري امیـــــل سره
راشــــه چې د سپینې غـــاړې هار دې شم

شرنګ دې د پایزیب په زړګي بنـــه لګي
راشه چې پایزیب دې شم شرنګار دې شم

ما هم د زیړ ګل د مینې زمزمې راټولې او د لاندي شعر په چوکاټ کې پیل او د وطن خوږ ژبې سندر غاړي محترم صدیق شباب ته د کمپوز لپاره ورکړې، چې هغه هم په خپل خوږ اواز او ښکلې انداز

کې کمپوز کړي چې نن سبا بــــه د ګرانو هیوادوالو د توجــــه وړ وګرځـــې چې دا دی هغه شعر ته د ستاسو محترمولوستونکو توجه را ګرځوم ۰

راشه چې سپرلی دې شم

راشــــه چې سپرلی دې شـــم ګلـــزار دې شم
راشــــه چې د بدې ورځې یار دې شـــم

ستـــــا د پـــــاکې مینې محبت کې یار
ژوند شمــــــه وږمه شمــــه بهار دې شم

نه شتـــــه بلـــــه لار ، نه بل تدبیر چیرې
راشـــــه چې مرهم دې شـــــم قرار دې شم

ته ما ته په مینــــــه مینــــــه وګوره
زه دې سره لمبـــــــــه شمه انګار دې شم

مـــــا سره جـــــذبه د ه محبت زړه کې
راشـــه چې کاکل دې شم سینګار دې شم

مینه د اخلاصـــــــه سره خـــــــوند کوي
راشــــــــه چې د مینې وفـــا دار دې شم

هسکـــــه غاړه زیب لري امیـــــــل سره
راشـــــه چې د سپینې غـــاړې هار دې شم

شرنګ دې د پایزیب په زړګي ښـــــه لګي
راشـه چې پایزیب دې شم شرنګار دې شم

# شیرمه برخه

زیړګل خپل د راتلونکي ژوند په فکر کې ډوب او کله کله به یې له ځانه سره ویل چې انسانان د ژوند په مختلفو پړاوونو کې د مختلفو مسایلو ، کړکیچونو او پرابلمونو سره مخامخ کیږي خو یوه او کامیابه خلک هغوی دي چې ددغو مسائلو ، مشکلاتو او موانعو په مقابل کې د پوهې او معقولیت نه کار واخلي ، که چیرې انسان د ژوند په دې پړاونو کې معقول دریځ او عملي ګامونه اوچت نه کړي بیا ورسته هغه فرصت نه ورته میسریږي ·

زیړګل پدې سوچونو کې دې نتجې ته رسیدلی وه په هر ډول چې وي خپل تحصیلاتو ته باید ادامه ورکړي، هغه د راتلونکې ژوند د خوشبختیو اساسي لار په تعلیم او زده کړه کې لیدله ،او دا ورته جوته شوې وه چې دلوړو لاسته راوړنو لپاره باید لوړو زدکړو ته ځان چمتو کړي ·

څه مده ورسته د هیواد په مرکز او ولایاتو کې د دولسم ټولګیو د فاریغینو د کانکور د ازموینې نیټه اعلان شوه ، زیړګل هغه همصنفیانو ته کوم چې دازموینې د نیټې خبر یې نه وه ترلاسه کړی خبر ورکړاو د خپلو نژدې دوستانو کوم چې د ازموینې لپاره یې امادګي ښودله ،دا هیله وکړه چې یوځای به د ازموینې لپاره درسی پروګرام په مخ بیایي په همدې اساس زیړګل خپلو ملګرو ته داسې وړاندیز وکړه چې دازموینې تر نیټې پورې به هر ورز د سهار د نه بجو نه بیا د غرمې تر دولس بجو پورې ددوی حجرې ته راشي او د ازموینې په احتمالي پښتنو به سره په شریکه کار وکړي ·

د زیړګل دا په موقعي وړاندیز د ټولو د تاید او ملاتړ وړوګرځید او هره ورځ به په هجره کې یو ځای د فزیک ، کیمیا ،ریاضې معادلې حلیدلې او همدارنګه د بیالوژي ، تاریخ ، جغرافیه ، دیني اونورو مضامینو سوالونه بیرون نویس او د هغو لپاره یې مناسب جوابونه برابرول چې په ربښتیا سره هم د دوی دا هلو ځلو ښې پایلې اولاسته راوړنې د دوی په برخه کړې ·

زیړګل همداسې چې د طب مسلک خوښیده په ډیرعالي نمرو همدې پوهنځې ته بریالي شو او نور ملګرو یې هم د کارنکور آزموینه په بری پای ته ورسوله او د خپلو خوښې د پوهنځی ګانو په

لستونو کې خپل نومونه ولیدل ،هغو یو بل ته یې د خپلو د زحماتو او لاسته راوړنو څخه مبارکی وویله او د خوشحالۍ اظهار یې کاوه ۰

زیړګل او د هغه ملګري په ډېره خوشحالي بیرته خپلو کلو او بانډو ته را ستانه شول او د خپلو بریاو زیری یې خپل دوستانو ، کلیوالو او د کورنیو غړوته ورکړ ،هغوی هم ددوی لاسته راوړني ولمانځلې او هغو ته ئې مبارکي وویله ۰

زیړګل اوس د یو نوې حالت سره مواجه وه ،هغه پدې مسألې فکر کاوه او پدې پوهیده چې د منظم درسونو د تعقیب لپاره هغه محصلین چې د ولایاتو نه کومو پوهنځیو ته د بریالتوب چانس تر لاسه کړې وې باید د مربوطه پوهنځیو د پوهنتونو په لیلیه کې میشت شې ، هغه پدې فکر کې وه چې ددې په تلو به څوک د کورنې جنجالونه حلوې او د هغوی جوړیا ناجوړ ته څان رسوي،په همدې چرتونو کې ډوب وه چې تره یې ورته غږکړ ۰

زیړګله ځویه!

ته راځه چې څه ضروري خبرې درسره لرم ۰

زیړګل په بیړه څان تره ته ورسوه او بعد له سلامه یې ورته وویل اکا څه مو ویل ؟

هغه په داسې حال کې چې شین خالۍ او د هغه مور هم هلته ناسته وه زیړګل ته د سلام د ځوابه وروسته داسې وویل ۰

زیړګله!

هغه لږ څه غلی شو بیا یې په داسی حال کې چې خپلې میرمن او شین خالۍ ته کتل زیړګل ته داسی وویل:

ته پدې پوهیږې چې په ژوند کې خوشبختي ، هوسا او ارام ژوند په خپله سرې ته نه راځي ، د دې لپاره چې سړې خپل هدف ته ورسیږي لازمه ده مطلب ته درسیدلو لپارکوشش وکړي او زحمت وباسي ۰ زه ستاپه تشویش او مشکلاتوباندې پوه یم ، ته زموږ له خوا هیڅ تشویش مکوه ،ته اوس کوشش وکړه چې هوښیار طبیب درنه جوړشي ، زموږ په کلو او بانډوکې ډاکترته ډیرضرورت دی او ډاکتران په ولسونو کې د عزت او اعتبار خاوندان دي ، په موږ هم عمر تیر شوي او د ډاکتر ضرورت احساسوو ۰

دوهمه خبره داده چې د زمینداری کارونه بزګر په مخ بیا بې بیا هم ستاسو د تحصیل ځای دومره لرې ندي ،ته کولی شې د هفته په رخصتیو کې کورته راشې ،او که بیا هم کوم مشکل وه بیا حتمي تا خبروو ، زه فکر کوم زه اوس داسې مشکل نه وینم چې هغه دې ستا د تحصیل خنډ وګرځې ،زموږ مشوره تاته همدا ده چې ته دې بې له کومې اندیښنې خپلو زدکړو ته ادامه ورکړې ٠

د شین خالۍ مور هم زیرګل ته ډاډ ورکړ او وته یې وویل ٠

زیرګله ځویه!

اکا دې رښتیا وایې ته هیڅ تشویش مکوه ته باید زحمت وباسې چې تا نه یو هوښیار طبیب جوړ شي ٠

زیرګل چې خپل تره او د هغه هرې فیصلې ته په درنو سترګو کتل ،تره ته یې په جواب کې وویل ٠

اکا څه چې ستاسو مشوره وي هغه ماته منظوره ده ٠

زیرګل د ځایه پاڅید او شړۍ ئې تر ځان چارپیره کړه او د ځارویو د راوستلو په تکل کې شو ، خو په لارکې ئې د شین خالۍ نه د جدا کیدو فکرتکنی کړی وه ، د هغې څخه د جدائې تحمل ورته ګران وه خو هغه ته بله لار معقوله نه بریښیده ٠

شین خالۍ ته م د زیرګل بیلتون د تحمل وړ نه وه ،خو د پلار د فیصلې خلاف یې هم هغه نه شو ستنولی ،مجبوره وه د پلار فیصله ومنې او د زیرګل د بیلتون د زغم او حوصلې توان پیدا کړي٠

څو ورځې ورسته د پوهنتون د درسونو د پیل موقه راورسیده ، زیرګل او د هغه ملګري یوه ورځ د مخه بازار ته لاړل ٠زیرګل د ځان لپاره نوي جامې ،جمپرونه او نوي بوټان راونیول تر څو د پوهنتون په ساحه کې بې د نورو محصلینو سره سیالي برابره وي،همدارنګه ملګرو یې هم د خپل ضرورت

وړ شیان راونیول او د وعدې سره سم سبا د وخته د زیرګل دوی کره راغلل ، د زیرګل دوی په حجره کې نور دوستان او د کلي خلک هم د دوی د مخه ښې په مقصد راټول شوي وه٠

د زیرګل د ملګرو د رارسیدو سره سم د کلي اوسیدونکو ، سپین ګیرو اودوستانو یې هغوی ته د دوعا لاسونه اوچت او د لوی خدای له درباره څخه هغو ته د صحت او کامیابۍ هیله وکړه ٠

د شین خالۍ مور هم هغوی ته د دوعا لاسونه پورته کړ او د خدای پاماني وروسته یې رړنې اوبه د

ټوټکې په دود د هغوی پسې وشیندلې ٠

زیړ ګل او د هغه ملګرو خپل بیکونه ترغاړه او دولایــت د مــرکز په لوري روان او هلته په بس کې سپاره او ورسته له دوه ساعته منزله د پوهنتون مرکزې لیلیې ته ورسیدل ۰

دپوهنتون د لیلیي په انګړ کې دمحصلینو دهستوګنې دخونــو لست زړول شوې وه ، هریو دخپل دهستوګنې خونه ،د لباس الماري او د خوب ځاي پیدا کړ او د نویو ملګرو سره یې معرفت حاصل کړ ۰

زیړ ګل چې زما نژدې ملګری او د زړه د رازونو یار وه ،ورسته له څو اونیو د هغه لیدلولپاره لاړم ، هغه چې به همیشه د خپل دشین خالۍ د پاکــې مینې کیسې زما سره شــریکــولې زما په لیدو ډیر خوشاله او د نوې ژوند د کیسو ورسته د شین خالۍ د بیلتون په هکله داسې ویل ۰

د فکر تــــال کـــې زنګیده لیونۍ

بیا پـــــه زړګـــي مې وریده لیونۍ

زیړ ګل چې په رڼا او خوبونو کې د شین خالۍ خیره ورته په فکر او خیا لونو کې زنګیدله دخپل خوب کیسه داسې کوله ۰

ما مــې د زړه ورته داغونه شمیرل

دا بــــې پروا وه خنـــــدیده لیونۍ

هسې بـــې درده بې احساسه نه وه

څـــــما په میـــــنه پوهیده لیـــونۍ

ما چه اظـــهار ورته د مـــــینې کوه

لکه د ګـــــل به غـــــوړیده لیـــونۍ

او دخپل د مینې سندره یې داسې ختموله ۰

افغاني څومره ښې شیبې تیرې شوې

چې په مــــالت کې اوسیـــده لیونۍ

ما هم د زیړګل د زړه کیسې راټولې او په لاندې شعر کې مې خلاصه کړې ۰

# لیونۍ

د فکر تـــال کـــې زنګیده لیونۍ

بیا پـــه زړګـــي مې وریده لیونۍ

ما مـــې د زړه ورته داغونه شمیرل

دا بـــې پروا وه خنـــدیده لیونۍ

هسې بـــې درده بې احساسه نه وه

ځـــما په میـــنه پوهیده لیـــونۍ

ما چه اظـــهار ورته د مـــینې کوه

لکه د ګـــل به غـــوړیده لیـــونۍ

افغانې څومره ښې شیبې تیرې شوې

چې په مـــالت کې اوسیـــده لیونۍ

# اومه برخه

زېرګل ورو ورو د ښاري ژوند ، د پوهنتون د ماحول ، نويو دوستانو ،ملګرو او استادانو سره اشنا
کيده خو په هغه کې د کليوالي ژوند تاثيرات او کرکتر د ورايه په سترګو کيده ٠

هغه هم د کلو او بانډو ژوند او د ښاري ژوند تـو پيرونه احساسول ،هلته په کلي کې د زميندارۍ او
مالدارۍ تر څنګ پرګنيزې مرا ودی او ورځنی چارې،دلته د علم او پوهې ماحول دا هغه تفاوتونه
وه چې زيرګل ورسره نوی بلد يده ، هغه به کله کله دا متل کاوه چې وايي ٠

چيرته چې اوسې ، په خوی به د هغو شې٠

خو د زيرګل هغه ساده اوبې کبره ژوند سبب شو چې په ډيرلږ وخت کې ځانله ډير دوستان او صادقه

ملګري او اخلاصمندان پيدا کړي ٠

زېرګل د تحصيل په شرايطو کې د وخت په ارزښت او ماهيت ښه پوهيده ،هغه دا پتيئلې وه چې بايد
وخت تري بې خايه تير نشي ، هغه ته دا جوته شــوې وه چې د طب د مسلک لمړي يا مقدماتي کال د
زحمت او د زياره سره دي، څـکه چې پدي لمړۍ او دوهم سمسترونو کې د طبي نوو ترمنالوژيو سره
اشنا کيدل او همدارنګه د انګليسي ژبــه او لاتيني اصطلاحات په طب کې هغه اساسي او ضروري
مطالب دي چې دهغو يادول په بنسټيزه توګه دهر محصل د پوهې او د هغه دراتلونکي ژوند اساس
تشکلوي ، په همدې وجه هغه به تل د فراغت وخت د پوهنتون پــه کتابتون کې تيروه او هلته به يې
مسلکي کتابونه متالــعه کول او دطب د علــماو د نظــرياتو سره هم اشنــا کيده او هــمدارنګه په
کتابتون کې به د ورځپانو جرايدو او مجلو څــخه په استفادې د وطــن او ددنيا د حالاتو څخه ځان

خبروه٠

هغه د پوهنتون په ساحه کې د نورو انديښــنو ، نظريــاتو او داحزابو ترفـدارانو سره اشنا کيده ، د

مختلفو نظرياتو پيروانو به ورسره سياسي بحثونه کول ٠

هر تنظيم به د خپل حقانيت او وطن کې دې ناخــوالو عوامل تشريــح کول او و يـل به يې چې ددې
مشکلاتو او مطرحو مسايلو د حل لاره زموږ تګلاره ده ٠

زیړګل به د هر چا نظر په غور اوریده خو هغه په وطن کې د مختلفو سیاسې جریاناتو سره موافق نه وه ،ځکه هغه دافغاستان دخلکو دیو متحد او مشترک حرکت طرفدار وه ،هغه به ویل چې د وطن

خلک بلخصوص ځوانان په مختلفو ډلو او حلقو کې ببلیدل داد وطن په ګټه نه ده ، هر څومره چې د افغانسان خلک په خپلو کې سره یو موټې شې هغه زمـوږ دخلکو او دملک د ترقۍ په ګټه ده ،تنها یووالی دي چې کولای شې موږ دبریالیتوبونو او ترقۍ لوړمعراج ته ورسوي ،نه دا دیوواحد دین او ائېن خلک په مختلفو ډلو او تنظیمونو تقسیم کیدل ۰

خو هغه د یو تعداد متعصبه کسانو چې د ژبې او قومونو اختلاف ته لمنه وهله ډیر بد بیني درلوده ، او د هغو سره بې په پټه او ښــکاره کینه او نفرت درلود هغه به ویل افغانستان د ټولو مشترک کور دی ،دغه کسان یا د پردو نوکران دي او یا هم ډیر ناپوه خلک دي کوم چې په ناپوهۍ سره زموږ په هیواد کې د نفاق تخمونه کري ۰

ددی خبرو تر څنګ زیړ ګل دې نتجې ته رسیدلې وه چې د ا وخت هــغه باید خپلو درسي پرګرامونه تعقیب کړي تر څو د علم او پوهې له لارې خپلو هیوادوالو ته د خدمت مصدر وګرځي۰

خو دداسې مصریفیوتنو سره سره زیړګل د اکا ، کاکا ناوې او شین خالۍ د فکر او اندیښنو څخه فارغه نه وه او همیشه به یې یادول او د هــر لمانځه وروسته هغو تــه دصحت او سلامتیا دوعاوې کولې ۰

په شین خالۍ هم د زیړګل د مساپرۍ اسر د وارایه ښکاریده او کله کله به د هغه په چرت کې لاړه ۰

هغې هر مازیګری د زیړګل د شوتلو پنډ او د څارویــو راوستل د کلا انګړ ته په سترګو کې وه او همدارنګه په باغچه کې د هغه د لاس کرلې ګلان به یې په اوربل کتارول او د فکر د غلتولو لپار د خور لنډو سره وخت تیروه ۰

زیړګل یو ماښام چې تمامه ورخ یې په درس او دخونې په د پاکولو او نظم راوستلو وار تیر کړې وه ډیر ستړی معلومیده ، په خپل چپرکت پریوت او د شین خالۍ پــه فکر کې یې هغه وختونه په زړه شول کوم چې هغې ته یې د زرګر د دوکان څخه خیالي چارګل رانیولــې وه او غوښتل یې چې شین خالۍ ته یې دکمکي اختر په مناسبت په اختر مبارکې کې ډالۍ کړي ،چې هغه وخت یې په لاره کې د ځانه سره داسې زمزمه کوله ۰

خیالي چارګله

ښکلی چارګله شینو جانې له دې وړمه

هغه چې د شين خالۍ توري زلفې ،ښکلی دغاړې هار او دجگې پوزې چارگل په سترگو کيده نو داسې به يې ويل ۰

زلفې يې تورې تور اوربل يې مزې دار دی نا

څومره ښايسته په غاړې پروت د زرو هار دی نا

دا سور چارگل يې پاس په پوزې پرې دار دی نا

مين يې کړمه

دا پټ کاته يې په زړگې ويشتل کوينه

زيړگل ته د شين خالۍ د بنگړو شرنگهار ډېرخوندورکاوه او دهغوپه وصف کې داسې زمزمه کوله۰

دي دشنو شنه بنگړونه ډک سپين مړوندونه

د بنگړو شرنگ يې ليوني کړه عالمونه دي

ظالمې کړې دي د خيا له ډير کبرونه دي

ستې يې کړمه

شرنگ د بنگړو يې عالمونه خبروينه

او د خپلې د خورِ زړگې تسل يې په لاندې بيتو کې ختماوه ۰

خيا لي چارگل مې د اشنا په پوزه سپور ښکاريده

څومره ښاسته لباس کې وتې حال يې نور ښکاريده

ښايسته سور شال کليوالي يې په سر خور ښکاريده

نظره نه شې

دا افغاني لباس يې څومره خوند لرينه

ما هم د زيړګل د زړه خبري او اواز په لاندې شعر کې پيل او تاسو محترمو لوستونوکو ته يې ړ الیـ کوم .

خيالي چارګله

خيالي چارګله

ښکلی چارګله زرو جانې ته دې وړمه

زلفې يې تورې تور اوربل يې مزې دار دی نا

څومره ښايسته په غاړې پروت د زرو هار دی نا

دا سور چارګل يې پاس په پوزه پرې دار دی نا

مين يې کړمه

دا پټ کاته يې په زړګي ويشتل کوينه

د جلی شنه بنګړونه ډک سپين مړوندونه دي

د بنګړو شرنګ يې ليوني کړه عالمونه دي

ظالمې کړې يې د خيا له ډير کبرونه دي

ستې يې کړمه

شرنګ د بنګړو يې عالمونه خبروينه

خيا لي چارګل مې د اشنا په پوزه سپور ښکاري

څومره ښاسته لباس کې وتې حال يې نور ښکارې

ښايسته سور شال کليوالي يې په سر خور ښکاري

نظره نه شي

دا افغاني لباس يې څومره خوند لرينه

# اتمه برخه

د شین خالۍ د کیسو او بنډار نژدې ملګرې د هغې خورلنډې وې خو نژدې خوا خورېې د هغې مور وه چې د زړه خبرې به یې ور سره شریکولې ۰

شین خالې د زیړګل په لرې توب تل غمجنه وه چې دهغې دغـم احساس د هغې په ظاهري بڼه کې له ورایه څرګندیده، هغې د زیړګل په اړه یوه ورځ خپلې مور ته داسې وویل۰

! مورجانې

ابا خو زیړګل ته ویلي وه چې هغه به د اونیو په رخصتبوکـې کلي ته راځي ، اوس خو شپږ میاشتې تیرې شوې دهغه د راتګ هیڅ پته ونه لګیده ،بیګا مې هم پریشانه خوبونه لیدلې، خدای دې وکړي چې ناروغه شوې نه وي ۰

مورې ورته په جواب کې وویل ۰

شین خالۍ ته ډیر چرتونه مه وهه ، هغه بله ورځ پـلار دې ددهقان سـره د ولایت بازار ته تللې وه ، د پـلار دې هغه په همغه ورځ د زیړګل سره په تیلیفون کـې خبرې شوې و ې ، پلار دې ویل چې دهغه درسونه زیات دي او وایې چې هغه باید ډیر درس ووایې څکه چـې د ډاکټري اول کـال ډیر زحمت پکار لري وایې که څوک په دې کال کـې بریالـی نه شي بیا نو ډاکتري د فاکولتې چانس له لاسه ورکوي ،همدا وجه ده چی زیړګل شپه او ورځ درس وایـې چې پـه خیر کامیابه او ښه ډاکټر ترې جوړ شي۰

او دا یې هم ویلې وه چی څو ورځې ورسته یې له خیره سره د دوو اونیو لپار رخصتي شروع کیږي او کور ته راځي، ته چرت مه وهه او دوعا وکړه چې په درسو کې بریالی شي ۰

شین خالۍ ددې خبرې په اوریدو ډیره خوشاله شوه او په زغرده دزرځانګې کورته چې د هغې نژدې خورلنډه وه او په راتلونکو څو ورځو کې یې دواده تیاري نـیوله ،هغې ته یې د زیړګل دراتلو خبر ورکړاو خپل د خوشالې احساس یې دهغې ترغوږوورساوه۰

زرڅانګې وويل ۰ زه هم د خدايه دا غواړم چې زيړګل زما د واده پورې راشي خکه زيړګل خو به زما واده په خپل ښکلي اواز او سندرو نور هم ښکلی کړي ، زه همدا اوس مې پلار ته وايم چې هغه ته زما د واده کارت وليږي ۰

دزيړګل هم د لمړي سمستر پرګرام په ډير کوشش او زحمت پاي ته په رسيدو وه چې د سمستر په اخر کې د دوو اونيو درخصتي لپاره تيـاري نيوله نو همدا وجه وه چې شين خالۍ ، اکا او کاکا ناوي ته دسوغاتونو د اخستلو په نيت دخپل دخونې د ملګرې سره ښارته وتلې وه او دعلاقې وړ سوغاتونه يې هغو ته راونيول۰

شين خالۍ چې د بنجاره سينګار ډير خوښيده ، هغې ته يې شنه او سره بنګړې، جامې ښکلې ټيک او ډير نور بنجاري سامان ، او همدا رنګه د کاکا ناوي ته ښکلې شين رنګه شال او تره ته يې ښکلې پالاوۍ لنګې راونيوله او ټول يې په مناسب ځاي کې ځاي پرځاي کړل ترڅو پس له شپږ مياشتې مساپرۍ د هغو زړونه د سوغاتونو په ورکولو خوشاله کړي ۰

څو ورځې وروسته د زيړګل د لمړي سمستر درسونه پای ته ورسيدل او دخپلو هلوځلو او زيارڅخه راضي معلوميده داسې احساس يې کاوه چې هغه څـه چې يې پتيلې وه پـه همغه ډول يې درسونه تعقيب او د نتجې څخه يې راضي وه خو ددې رضايت او خوشالۍ تر څنګ دا چې سبا کلي ته روان

وه او پس له څو مياشتو بيا دا موقعه تر لاسه کوې چې خپل کلو بانډو ته ځي د ډيري خوښي شيبې

شميرلې او دځانه سره به يې ويل چې څنګه به سبا ځـان د موټرو تم ځاي تـه رسوي او کله به بيا په خپلو کلي او ځمکو ګرځي او دشين خالې خيا لې اوربل ته بـه په باغچه کـې ښايسته اورنګارنګ ګلان کري۰

سهار زيړګل د سهاردلمانځه ورسته خپل بيک چې تير ماښام يې دسفر لپار جوړ کړي وه تر غاړې کړ اودخپلو د خونې د ملګر څخه يې چې هغوی هم د رخصتېو څخه په ګټه اخستو خپلو کلوا و کورو ته روان ول خدای په اماني و اخيسته او دخپل ولايـت د موټرو تم ځـاې ته روان شو ، د بس پـه تم ځاي کې يې د خپل ولايت ډيـر ي اشنا څيرې تـر سترګو شــوې خــو د زرڅــانګې پلار يې دورايه وپيژانده او د هغه سره تر روغبړ وروسته دواړه په بس کـې څنګ ترڅنګ چوکيو کې کيناستل اود لارې ملګري شول ۰

په لاره کې زيړګل د زر څانګې د پلار څخه مرکز ته د هغه دراتګ وجه وپوښتله اوورته يې وويل۰

کا کا خيريت خو به وه څنګه مو دلته پيښه شوې وه ؟

هغه په جواب کې ورته وويل ۰

زيړ ګله !

ښه شو چې ومې ليدلې ،ما فکرکا وه چې تا به زه ځنګه پيدا کوم ،ښه شو چې خدای دلته را پيدا کړې۰هغه دبس په اخره ځوکې کې چې ناست دې هغه ځما ځــوم دی او د کوزکلي د زمانخان اکا ځوی دې او هغه تورسرې چې وينې يوه يې زرځانګه او هغه بله يې مور ده ۰

موږ دلته د واده خريد ته راغلي وؤ ، خريد مووکړ ، که د خدای رضاوي بله اونۍ د زرځانګې واده

دی ، ښه شو چې ته راغلې چې دواده په کارو کې برخه راسره واخلې ،تا خو هميش د کلي په مړي او ژوندي کې کليوالو ته ځان رسولی دي بس د ميـلمنو پالنه او هغوسره د ګپ ،شپ او ټنګ ټکور دنده مو تاته درسپارلې ده ۰

زيړګل ورته په لــمړي سر کې د خوښی مبــارکي وو يله او بيا يې ورته اطمينان ورکړ او وې ويل۰

تاسو بيغمه او سۍ کاکا زه کارونه جوړوم ۰

په همدې ډول تر کلي پورې دواړو د زړه خواله وکړه او پس له څه مدې منزله کلي ته ورسيدل او د بس څخه کوز او د کلي په لو ر روان شول ۰

زيړګل کلي تــه د رسيدو مــخکې د اميـــن اکا په ديره کې د کلي د ځــوانانو سپين ګــرو او نورو او سيدونکو ګڼه ګونه تر سترګو شوه ۰

هغه ځان په چټکی ورساوه چې ګوري د سواد او زدکړې استازي کلي ته راغلي تر څو د بيسوادی د له مينځه وړولو لپاره سرشميرنه وکړی چې څومره ښځينه او څومره د کلي نارينه اوسيدونکي چې د سواد د نعمت څخه محروم دي ددی کورسونو د تعقيبولو لپاره چمتو دي۰

د کلي اوسيدونکو د زيړګل په لــيدو خوشاله شول او دهــغه د هرکلي لپــاره مــخې ته ورغلل ۰

پس له روغبړه زيړګل په احوال ځان خبر کړ او ټول دزيړګل د اکـا باغچې ته راغلل او هـلته زيړګل خپل کلي والو ته داسې ويل ۰

!درنو خويندو او ورنو

سواد او پوهه دا هغه د خداې لوی نعمت دې چــې لوی خدای پــه خپلو بنده ګانو که نر وی یا ښځه فرض ګرځولی دی، زموږ د پاک او سپیڅلي دین مشهوره لار ښونه او حدیث مبارک دې چې وائې علم زده کړه که څه هم په چین کې وي ۰ دا چې او س مــوږ ته په کلي کــی داسې مــوقعه برابره ی د خــوښی ځاي دې چې زموږ د کلې هغه خویندې او ورونه چې دا فرصت ولری ځــان په دې کورسونو کې شامل کړي ،ترڅو په راتلونکو ځو میاشتو کې د ســواد او زده کړې د نعمت څخه بهره مند شي۰

زما د سواد اموزۍ استازو ته دا وړاندیــز دې چې د کلــو د ښځینه کــورس لپاره دې زموږ د کلې د

زمان اکا لور زرځانګه چې یوه تعلیم یافته خور ده د ښوونکې په توګه وګمارل شي ۰

د کلي ټولو او سیدونکو د زیړګل خبرۍ تاید او لاسونه یې ورته وپړکول ۰

استازو هم د زیړګل دا وړاندیز و مانه او د زرځانګې د پــلار څخه یې هیله وکړه چې د زرځانګې

موافقه پدې برخه کې د یو درخواست په ډول ولیکي چې موږ یــې نور قانوني مراحل د خلاصولو

ورسته په دې دنده وګمارو او د نارینه کورسونو لپاره تکړه استــاد حبیب الله خــان دې چې دلته تشریف لري تاسو ته معرفي کوم ۰

د پروګرام ورسته زیړګل د کلا انګړ ته ننوت ، شین خالــۍ او کاکا ناوی چې دمخه د هغه د راتګ څخه خبر شوي ول مخې ته راغلل او دهغه سره یې روغبړ وکړ او په لیدو یې ډیر خوشاله شول ۰

شین خالی هم د غرمې ډوډې تیاره کړې وه او ټــول یو ځای په دستر خوان کــیناستل او د غرمې ډوډۍ یې نوشجان کړه۰

د شین خالۍ مور زیړګل ته ویل څنګه شوه ځویه درسونه دې خداې دې وکړې چې ښه نتجه دې تر لاسه کړې وي ؟

زیړګل ورته په جواب کې وویل ۰

موري بې زحمته سرې مطلب ته نشي رسیدلای ، زه د خپل زحمته راضي یم ، ښې نمري مې تر لاسه کړې ،تاسې بیغمه اوسې ما باید زحمت ویستلې واې ۰

د کاکا ناوې وویل ۰ شکر چې ښه نتجه دې تر لاسه کړې ده تل خوشاله او بریای اوسی۰

شین خالۍ هم د زیړګل په برې خوشاله وه ،پس له ډوډې زیړګل د شین خالۍ سوغاتونه د بیکه راوویستل او ورته یې په ډیره مینه ډالۍ کړل او همدارنګه د کاکا ناوی شال یې هم د هغې

پر اوږو هموار کړ او د اکالنګۍ هم ورکړه چې اکا کورته راشي او هغه ته یې پر سر وتړي چې هغو هم د زیړګل سوغاتونه په ډیر خوښي ومنل او د هغه څخه ئې مننه وکړه ۰

پس له څو شیبو خوړو کیسو او خبرو شین خالۍ د زرخانګې د واده خبر زیړګل ته ورکړ او د هغې دا هیله یې هم ورته وویله چې واده ته به یې ښکلی شعر جوړوي چې بیا په واده کې ئې په سندرو کې ووائې ۰

زیړګل د شین خالۍ دا هیله ومنله او خپله شړې یې تر خان چارپیره او د داما ن څمکو ته د اکا د لیدلو په مقصد ووت۰

زیړګل د دامان څمکو ته نژدې په یوه وړه غونډې کیناست او داسې زمزمه یې تر خولې شوه۰

شپــې دې د برات شــه شــه کلــونه دې اختر

پـل دې بخــتور شــه ناوې پـــل دې بخــتور

زرخانګه چې د شین خالۍ نژدې خورلنډه وه او زیړګل ته یې ورور ویلی وه زیړګل د هغې د راتلونکې په اړه داسې هیله لرله۰

پل دې بختور شــه ناوې مـینه کـې دې کورشو

نوې اشنـایي شـوه نـوی بـــل د مینــې اور شو

ستا د حسن شـــمعه چــې روښانه په هـر لورشو

حســن دې ښـکلا دې چــیرې مـه شــه د نـظر

پـل دې بخــتور شــه ناوې پـــل دې بخــتور

او دهغې د واده محفل یې داسې تمثیلوه۰

نن چې دې محفل کـې خوشحالـې ده هم خـندا

خوښـې دې هـمزولــې دي په مـینه کــړي نڅا

يـې د نجـونو مـــيره ټـول دا ستا په تمـــاشـا

رب دې په نصيب کړه په ژوندون کې زيب او زر

پـل دې بخـــتور شـــه ناوې پـــــل دې بخـــتور

او په اخر کې د هغې د خوشبختې لپار داسې دوعا کوله ۰

ناوې نوی ژوند کې خوشحالي دې شه نصيب

کوردې بختورشه خوږ اشنـــا دې شه طبــيب

اور يې چې بلـيږی پاک الله يې شـــې قريـــب

وی دی په امان کـــې افغـاني ښـــکلی بشر

پـل دې بخـــتور شـــه ناوې پـــــل دې بخـــتور

ما هم د زيړګل د زړه خبرې په لاندې شعر کې راټولې او د وطن خوږ ژبې سندرغاړې صديق شباب ته د کمپوز لپاره ورکړ چې هغه هم په خپل ښکلې اواز کې کمپوز کـړی دی چې نن سبا به د درنو هيواد والو د توجه وړ وګرځي ۰

پل دې بختور شه

شپـــې دې د برات شـــه شـــه کلـــونه دې اخـتر

پـل دې بخـــتور شـــه ناوې پـــــل دې بخـــتور

پل دې بختورشـــه ناوې مـيـنه کـې دې کورشو

نوې اشنـــايي شـوه نـوی بـــــل د مينـــې اور شو

ستا د حسن شـــمعه چــې روښانه په هـر لورشو

حســن دې ښـکلا دې چـيرې مـه شـــه د نـظر

پل دې بختور شه ناوې پل دې بختور

نن چې دې محفل کې خوشحالي ده هم خندا

خوښې دې همزولې دي په مينه کړي نڅا

يې د نجونو ميره ټول دا ستا په تماشا

رب دې په نصيب کړه په ژوندون کې زيب اوزر

پل دې بختور شه ناوې پل دې بختور

ناوې نوی ژوند کې خوشحالي دې شه نصيب

کور دې بختور شه خوږ اشنا دې شه طبيب

او ريې چې بليږی پاک الله يې شې قريب

وی دی په امان کې افغاني ښکلی بشر

پل دې بختور شه ناوې پل دې بختور

*** ***

# نهمه برخه

زیړګل ته د دوؤ اونیو رخصتي بیا دا موقعه برابره کړه چې د پخوا په شان د کلیوالي ژوند څخه بهرمند شي او د کلیوالو سره راشه درشه ولري ، په غم ،ښادۍ او ورځنۍ ژوند کې د هغو سره کور او کلي شي او همدا رنګه د اکا سره د کــرني او مالدارۍ پــه برخه کې مــرسته وکــړي او خپل د راتلونکي ژوند د ملګرې شین خــالې د ارمانو او هیلو د تر سره کــولو لپاره د هغې په چوپړ کې وي ۰

شین خالې د زیړ ګل څخه دا هیله لرله چې د هغې د خــورلنډې زرخــانګې په واده کې د هغه د پلار سره نژدې سلاکار او سي ځکه چې زرخانګې مشر وررور ندرلود همدا وجه وه چې د هغه څخه دا تمه لرله چې هغه به د زرخانګې د پلار نژدی مرستندوی وی ۰ زیړګل هم دا پتیله وه چې د واده په مراسم او تیارۍ کې د زرخانګې د پلار سره مرسته وکړي ۰

ماښام کله چې زیړګل څاروي د کلا انــګړ ته راوستل نو په شین خــالې یې غږ وکړ چې څاروي په خپلو ځایو کې وتړي تر څو د هغو لپاره آذوقه برابره کړي ۰

شین خالې او د هغې مور په ګډه څاروي په خپلو ځایو کې وتړل ،زیړګل چې د شوتلو پنډ تر شا او لور یې په لاس کې وه لمړی یې د شوتلــو پنډ د وچو وښو تر څنګ تــراوړې ښکــته کړ او لور یې د دیوال په د رزکی خښ کړ او بیا یې شوتله د وچو وښو سره ګــډه کــړه او د څـارویو مخې ته یې په کافي اندازه واچوله او خپل څادر یې چې شوتلــه پکې راوړې وه و څنډه او د کور په انګړ کې چې په ګلمونو ، توشکو او کټونو سنبال شوی ؤ کیناست ۰

شین خالې په بیړه چاې تیار او په پتنوس کې یې د تورو چایو پیاله د مساله دارې ګوړې سره د زیړ ګل مخې ته کیښود ۰

یو څه شیبې وروسته د شین خالې پلار او مور هم راغــله او شین خالې د هغو مخــې ته هم د شنو چایوډکې پیالې کیښودلې ۰

زیړګل د تورو چایو څښکل عادت درلود ،مګــر د شین خالۍ مور او پلار د شنو چــایو څښکل غوره ګڼل او ویل به يې چې د شنو چایو ګټې ډیرې دی خو شین خالۍ بیا دومره سر پری نه خوږاوه هغې ته که تور چای وه او که شین تو پیرنه درلو د ،څــه چې به تیار وه هغې به څښل خو بیا زیړګل او د شین خالۍ مور او پلار ته خپل د خوښې چای عادت ګرځیدلی وه٠

زیړګل د چاي اخــري پیاله پــه سر واړولــه چې د کــلي د ملا د الله اکبر آ واز پــورته شو ټــولو د جل جلالهو اواز تر خولې وخوت ، زیړګل ځادر او اکاېې شړۍ په اوږه کړه او د جومات په لور روان شول ترڅو د ماښام لمونځ په جمعه وکړي، دوې په ځغرده ځان جماعت او د جمې لمونځ ته ورسوه ٠

په کــلي کې د ماښام لمانځه ته د کلي او سیدونکي حتمي جــومات ته راتلل ، په تیره بیا د کلي سپین ږیری او خوانان ځکه چې دورځې له خوا ټــول دکار او غریبۍ لپاره د کــلي څخه بهر وتل ، ځوک به د بزګرۍ په کارونو بوخت وه ، ځوانان به د تعلیم او زده کــړې لپاره ښوونځیو ته تلل ، په کلي کې تنها دکور میرمنې او واړه ماشومان پاته کیدل چــې په خپلو کې بــې راشه درشه لــرله او همیش بې بنډارجوړ وه خوددې بنډارو ترڅنګ د کورد کارونو سنبالول ، دجامو پریمینځل ، پخلې او نور ډیر مصروفتونه وه چــې د کور ښځو هم په ډیــر زحــمت او کــړاونوورځنــۍ چارې تر سره کولې٠

سبا د زرځانګې پلا ر، زرځانګه د شین خالۍ کورته واستوله چې وګوري که چیری زیړګل او تره یې په کور وي ترڅو د واده په اړه د هغو سره خپل پروګرام شریک کړی ٠

د زرځانګې کور د شین خالۍ د کور په څو قدمې کې وه پــدې توګه په کلــي کې د دې دوؤ کورنیو تګ راتګ د کلی نورو او سیدونکو په پرتله ډیرؤاو ښې اړیکې یې ساتلې٠

زرځانګې د زیړګل او د هغه د اکا شتون پــه کورکې خپل پــلار ته خبر ورکړ ٠هغه هم دځایه پاڅید ، پګړۍ یې په سر وتړله ، واسکټ یې واغــوست او خپله تور بــخنه شړۍ یې تر ځان چار پیره کړ او د زیړګل د کور په نیت روان شو او هلته په رسیدو د هغو د کور ور وټکوه ٠

زیړګل د کلا ور خلاص کړ او د زرځانګې د پلار سره یې روغبړ وکــړ او هغه تــه یې کورته د ننوتلو بلنه ورکړه اود کور په انګړ کې ورته ځاي برابر کړ٠

زیړګل ، دزیړګل اکا ، شین خالۍ او کاکا ناوي هم د هغه هرکلي ته راغله او د هغه په مخامخ لوري کیناستل ٠

د روغبړ نه وروسته شین خالۍ د چای د جوړولــو لپاره لاړه او دوي خپل خبري د زرځانګې د واده په اړه پیل کړې ٠

په پیل کې د زیړګل آکا د زرڅانګې د پلار څخه داسې وپوښتل ؛

! لعل میره

څنګه شوه د زمانخان آکا سره مــو د واده په اړه څه وکــړل او څه نتجې ته سره رسیدلي یاست ؟

د زرڅانګې پلار ورته پــه ځواب کې وویل ۰

آکا ، که رښتیا راباندې وایې ماملـه خو جوړه ده ، داسې د جنجال یاستونځی کــومه خبره نشته ،زمانخان هم بد سړی ندې، که څــه هم د زرڅانګــې مور یو څه اضافي بوجونه پر هغو ایښې ؤه، خــوکله چې زه خبر شوم ما د زرڅانګې مورته قناعت ورکړ ، اصلي خبره خو داده چــې زرڅــانګه زموږ یوائینی لور ده ، موږ بل اولاد یا وارث نلرو ،اوس که مــوږ په ځــوم دا بې ځایه مصارف او بوج واچوو نو دهغــو راتلونکی ژوند به د کړاونو سره مخ شي چی دا خبره ما د زمانخان سره هــم شریکه کــړه اوورته مې وو یل څرنګه چې مو زړه وې، د استاسو خپله معامله ده او زه نــه غواړم چــې پدې بــرخه کې کوم شرط یا بوج درباندې کیږدم ، دبلې خوا د زمانــخان آکا دې هم کور اباد وې پوه او مشر سړی دی ، هغه زما ددې فیصلی څخه مننه وکړه او راته یې وویــل چې دا زموږ او تاسو د خوښــی او دوستی خبره ده ،ستاسو دی کور آباد وې خو موږ هــم خپل هوس اوآرمان لرو ، زموږ هم دا هیله ده چې زموږ واده او دا خوښی په ښه شان سره تر سره شې ،تاسی تشویش مکــوی مــوږ د کلی رسم او رواج نــه ستر ګې نه شو پټولی هغه څه چې لازمه او زموږ په وس کې پوره وي هغه موږ خپله هــم داتکل لرو چی زموږ د اولادونو دا خوښې په پوره درښت تر سره شې ۰

د شین خالۍ مور په آخر د خبرو کې داسې وپوښتل؟

لعل میره آکا ، د واده ورځ او نیټه مو وټاکله ؟

د زرڅانګې پلار ورته په جواب کې وویل ؛

هو د واده ورځ مو معلومه ده ، راتلونکې دجمعې په ورځ که دخداې رضاوې واده د ی ، همدا وجه ده چې آکــا ، زیړګل او تــاسوسره د مشورې لپاره راغــلی یم ترڅو د واده پــه تنظیم کې له ما سره برخه واخلۍ۰

په همدې ډول لعل میرآکا ، زیړګل ، او د شین خالۍ مور او پــلار د واده پروګرام جوړ اودې پایلې ته سره ورسیدل چې د ښځو مراسم دې د زرڅانګې دوی په کوراو د نارینه و لپاره د شین خالۍ دوی په کورکې ځایونه برابر شې اومیلمنو ته د ډوډی جوړولو او پخلي کارونه دې هم دلته تر سره شي ۰

کله چې د زرخانګې پلار د زيړ ګل او دهغو د خپلوانو د مرستو او ژمنې وعده تر لاسه کړه نو دهغو نه په خوښۍ سره د خپل کور په لور روان شو ۰

زيړ ګل هم خپل څادر په اوږه کړ، لور او بيـل يې واخيست او د بـاغچې پـه لور روان شـو ۰هغه د زمانخان اکا ځوی يا د زرخانګې کوژدن ا باسين له وړکتوب څـخه پيژنده ، هغه به هميش پالاوی لنګۍ تړله او جګه شمله به ګرځيده ۰ نو کله چـې په باغــچه کـې په کار بوخت شو دا زمزمه يې تر خولې شوه ۰

پدې محفل کې نن خوشاله خوشالي ده

د شمـله دارهلک ښــادي ده

دزيړ ګل څخه شين خالۍ هيله کړې ؤه چې دزر خانګې واده ته به ښکلې شعر جوړوي چی دا زمزمه د زيړ ګل لپاره ښـه الهـام ؤه کـوم چې د هغـې پـه واده کـې يــې ډالـې کړي ، زيړ ګل د هغــې کلېوالې حسن ، خصلت او همدا رنګه د واده شپې تـه داسې هيله لرله ۰

ناوکۍ ځومـره ښه ښکاريږي

په ناز همـــزولې يې ګډيږي

د هلک کورپـــرې ابـــاديږي

په خپل ښايست کې يې خصلت کليوالي ده

د شمـلـه دار هلک ښادي ده

زيړ ګل د هغې ښکلاا و حسن يې داسې تمثيلوه۰

ناوې ښايسته لکه د ګل ده

څه د ښايست يې جلوبل ده

دا خوش بويي يې د سنبل ده

ځومره ښايسته د غاړې هاريې طلايي ده

د شمـلـه دارهلــک ښادي ده

د ا باسین او زرخانګې د نیکمرغې لپایه یې داسې هیله لرله ۰

ناوکۍ پــــل دی بخـــتور شه

شپی دې برات ورځ دې اختر شه

ژوندمـــورونبانه لکه لمر شه

دا زموږ هیـلـه ده امید دا مو مرضي ده

د شمله دارهــلک ښادي ده

او په اخر کې یې دا دوعا هغو ته د زړه ووتله ۰

ښه اوږد ژوندون مو په نصیب شه

ښاد مو هم لرې هم قریب شه

مینه مـو ګـــل اوعندلـــیب شه

اوسی خوشالـه دا ډالی د افغاني ده

د شمـــله دار هلک ښـــادي ده

ما هم دا ښکلې ملغلري پیل او خوږژبو هنرمندانو ته ډالی کړه چې د خوښې په مراسمو کې یې په خپلو خوږواوازونوکې هیوادوالوته واوروي چې پوره شعـرته په لاندې ډول ستاسو پام راګرځوم ۰

ډالی

پدې محفل کې نن خوشاله خوشالي ده

د شمـلـه دارهلک ښـــادي ده

ناوکۍ ځومـره ښه ښکاریږي

په ناز همـــزولې یې ګډیږي

د هلک کورپــري ابــاديږي

په خپل ښايست کې يې خصلت کليوالي ده

د شملـه دار هلک ښادي ده

ناوې ښايسته لکه د ګل ده

څه د ښايست يې جلوبل ده

دا خوش بويي يې د سنبل ده

څومره ښايسته د غاړې هاريې طلايي ده

د شملـه دارهلــک ښادي ده

ناوکۍ پـــل دی بخـــتور شه

شپې دې برات ورځ دې اختر شه

ژوندمـــوروښانه لکه لمر شه

دا زموږ هيـله ده اميد دا مو مرضي ده

د شمله دارهــلک ښادي ده

ښه اوږد ژوندون مو په نصيب شه

ښاد مو هم لرې هم قريب شه

مينه مـو ګــل اوعندلــيب شه

اوسۍ خوشالـه دا ډالۍ د افغاني ده

# لسمه برخه

## د شملــه دار هلک ښــاځي ده

د زرڅانګې او اباسین د واده انګازې پــه کلو او بانډو کــې خپرې شوې وې ،شین خالۍ هم د خپلې خورلنډې واده ته تیاري نیولې وه ، هغه په تیره اونۍ کې د زیړ ګل او مور سره دولایت بازار ته تللې وه او ځانله یې د بزاز له هټۍ څخه دجــامو لپاره دخپلې خــوښې ټــوکر او د بنجاري د دوکان څخه رنګارنګ د سینګار سامان رانیولی وه ۰

د اباسین پلار زمانخان اکاهم د اباسین او د زرڅانګې د واده لپاره پوره تیاري نیولې وه او دکلي د نائي په لاس یې ټولو کلیوالو ، لرې او نژدې دوستانو ته د واده دبــلنې کارتونه او خبر لیږلي وه او هغوته دمیلمستیا پروګرام جــوړ او د هغو د خــوشالۍ لپاره یې مشهوره هنري ډله رابللې وه او دکلي څخه بهر یې دامین ماما د دیرې ترڅنګ پــه یوه شدیاره ځمکه کې ورته ځای برابر او هغه ځای یې په کټونو ګلمونو او توشکو فــرش او پــه ګیسونو دشپې له خوا روښانه کیدو لپاره یې ځوانان په کارګمارلي وه ۰

د کلي نائې ګلاجان چې په ګلاجاني مشهور او د غلام بابا ځــوې ؤ یوه ورځ د مخه د زمانخان اکا د کلا په انګړ کې میلمنو ته د پخلي تیاري نیولې وه، هغه داسې چې خپل لوی او واړه دیګونه او نور د اړتیا وړ سامان چې په هر واده کې یې ترې کار اخیست له ځــانه سره راوړي ؤ او د پخلي لپاره یې ځو ځایه لوی او واړه نغري جوړ کړي ؤ او همدا رنــګه یې پــه لویو او وړو ډیګونو کې وریجې په ګرمو اوبو مینځلې او دنرمیدلو لپاره یې په اوبو کې ساتلې وې ، غوښه یې هم برخې برخې یخنې او نرمه کړې وه ترڅو ورسته بیا دنورو کارونو لپاره پوره وخت ولري ۰
په ربښتیا سره هم ټولو کلیوالو او د واده میلمنو ته میلمستیا اوهغو ته خوندور خواړه برابرول پوره زیار او منډې په کارلري چې په کلو او بانډو کې د نائیانو دا زیار د ستایلو وړ دي ۰

ګلاجان او نورو دآشپزې ګــروپ سهار دوخته د کلی د نــائې تر لارښوونی نغري بار او د هر رنګ خوراکونود پخولو کار پیل کړې وه ، دوه درې ډوله پلونه ، قورمه ، کوفته۰ بنډۍ ،بانجان بورانې ،سابه ، چپس ،او سلات او ډیرنور هغه حتمې خوراک وه چې تر مازیګره باید جوړ شوی وای ۰
مازدیګر کرار کرار کلي ته د میلمنو راتګ پیل شو چې د زمانخان اکا ، اباسین او د کلي د سپین ګیرو له خوا ورته هرکلی ویل کیده او د ځوانانو له خوا ټا کل شوي ځای ته چرته چې د میلمنو لپار جوړ شوی وه بدرګه کیدل ۰

پوره ټاکل شوي کسانو به میلمنو ته دلاس مینځلو اوبه وروړلې او نور ځوانانوبه د ستر خوان په

کیدوسره هغه په خوږو خوږو سمبالوه او میلمانه به ډلې ډلې راتلل او ډوډی به یې نوشجان کوله او بیا به د امین ماما د دیري په لور د سیل لپاره تلل ·
کله چې د ډوډی پروګرام خلاص شو نو د امین ماما د دیري ترڅنګ د میلمنو لپاره موظفو کسانو چاې اوبه او چلم ګرځاوه تر څو د میلمنو احترام یې ساتلې وې ·

د کلي او میلمنو په څیروکې د خوشالۍ روحیه دورایه څرګندیده اوښایسته ګڼه ګوڼه وه · څه شیبه ورسته سازیانو د موسیقی د آلو په سورولو پیل وکړ اوبیا ګل محمد استاد چې په ګلکي مشهور وه او په سیمه کې د ښه شهرت خاوند وه ارمونیه ترغاړه کړه او همدا رنګه د یارمحمد استا د د تبلو اواز د کلي او سیمی د خلکو ترغوږ شو · سازیانو په وار سره دبهاړي، بیرمي، بیاګ، کستوري، کلیان، اسا، او جوګ په راګونو کې دمقام ، غزل ،لنډۍ ،چاربیتي،لوبې ، بګتۍ او دا ستانونه په خپلو خوږو اوازونو کې راغلو میلمنو او تماشا چیانوته اورو ل ·

څو شیبې وروسته زیړګل هم د شین خالۍ د خور لنډې زرڅانګي په کور کې چې د ناوې خپلوان او خورلنډې په واده راغلي وې، د ډوډی او نورو مراسمو ورسته د خپل انډیوالانو سره د اباسین دلیدو او هم د سیل په مقصد د زمانخان اکاکلي ته راغلل·
د زیړګل دوستانو د هغه په لیدو هغه ته ښه راغلاست ووایه او د هغه څخه یې هیله وکړه تر څو ددوی د خوښۍ لپاره سندرې ووایي ، که څه هم زیړګل په اوله کې رضایت نه ښوده نو چې کله اباسین د هغه څخه هیله وکړه نو بیا یې ارمونیه خپله کړه اود دې سندریې په ویلو سره چې شعر خپله ورته جوړ کړی وه خپل اواز پورته کړ ·

پدې محفل کې نن خوشاله خوشالې ده
د اباسین هلک ښادی ده

ددې سندرې په اوریدلو سره د واده ګډون کونکو کې شور او احساسات نور هم زیات شول او ټولو ورته په خوشالۍ لاسونه وپکړول او د واده فضا نور هم توده شوه · زیړګل یو څو نورې سندرې وکړې او ورسته یې د دوستانو د تشویق څخه مننه وکړه او د ملګرو سره په کټ کیناست ·
په همدې ترتیب د شپې تر ناوخته پورې د واده نور مراسم د سازیانو په خوږو نغمو او سندرو دوام وکړ او ورسته میلمانه په احترام اوعزت رخصت او د اباسین دواده خوږه شپه ورته خوږه خاطره پاته شوه ·

سبا دورځې ساز او د واده مراسم ادامه درلود ، مازدیګر ډولۍ جوړه شوه اود کلي ځوانانو ډولۍ جګه او د ساز په بدرګه دناوې د راوستلو په نیت د لعل میر اکا د کور په نیت روان شول ·

کله چې ورسیدل د کلي ملا د سپین ګیرو او او میلمنو په ګډون د اباسین او زرخانګې شرعي نکاح وتړله او د کلیوالو او د واده ګډون کوونکی پــه ګڼه ګوڼ کــې په ډیره خوښي او خوشالي ناوې په ډولۍ کی سپره او د زمانخان اکا خوښي ترسره او آباسین خپله کوژدنه په کاله کړه ۰

کله چې د واده مراسم خلاص شول زیړګل د خپلې باغچې په لور روان شو تر څو د ګلونو او ترکاریو خبر واخلي په لاره کې یی د خپل واده پــه فکر او سوچونو هم غرق وه چې د باغچې په رسیدو یې د شین خالۍ په یاد دا زمزمه په خوله شوه ۰

دزړه باغچه کــې درتــه ګل کرمه
رامبیل،چمبیل،نرګس،سنبل کرمه
دا بــه وعــده راسره ګـډې دلبرې
دګلو سیل لــه بــه راځــې دلبرې

زیړګل په خپل تصور کې شین خالۍ ته داسې پیرزوینه لرله۰
د زړه باغچه کې درته خیال جوړوم
د ښــاپیـــریو پــــکې تـال جوړوم
زمــا دا هیلــه بــه مني دلبرې
دګـــلو سیـــل لـه بـه راځې دلبرې

او د شین خالۍ ځخه یې دا تمه لرله ۰
زما د پــاکې میني ښکلي بڼ کې
ستا د ښایسته حسن منلي بڼ کې
د وفــا لاس بــه راکـوې دلبرې
د ګــلو سیل لـه بـه راځې دلبرې

او پرهغې یې داسې سپارښتنه کوله ۰
زما د مینې او سرو ګلو باغچه
د رنګــینو ،بـاغ او بلبلو باغچه
بیا لــه خـزانه به ســاتې دلبرې
دګلو سیـــل له به راځې دلبرې
او په آخر کې یې د خپل د زړه هیله په لاندې بیت ختم او خپل د زړه خبرې یې شین خالې ته په سوچونو او خیالونو کې داسې ډالۍ کړې ۰

ترخو پــدي باغچي خزان ګډ شي
په سرو ګــلونو مې تالان ګډ شي
پاس په ليمو به قدم ګدي دلبرې
د ګــلو سيل له بـه راځي دلبرې
شين خالې چي کله د زړه ګل د زړه خبرې واوريدې هغه شعر کوم چي زيړګل ورته ويلی وه هغه ته په لاندې ډول تغير او زيړګل ته ډالۍ کړ .

د زړه باغچه

دزړه باغچه کــې درتــه ګل کرمه
رامبيل، چمبيل، نرګس، سنبل کرمه
دا بــه وعــده راسره ګـدي جانانه
دګلو سيل لــه بـه راځــي جانانه

د زړه باغچه کې درته خيال جوړوم
د ښــاپيــريو پــکې ټـال جوړوم
زمــا دا هيلــه بــه منې جــانانه
دګــلو سيــل لـه بـه راځي جانانه

زما د پــاکې مينې ښکلي بڼ کې
ستا د ښايسته حسن منلي بڼ کې
د وفــا لاس بــه راکـوې جانانه
د ګــلو سيل لــه بـه راځي جانانه

زما د مينې او سرو ګلو باغچه
د رنګــينو ،بـاغ او بلبلو باغچه
بيا لــه خـزانه به ســاتې جانانه
دګلو سيــل له به راځي جانانه

ترخو پــدي باغچي خزان ګډ شي
په سرو ګــلونو مې تالان ګډ شي
پاس په ليمو به قدم ګدي جانانه
د ګــلو سيل له بـه راځي جانانه

-----------------------------------------

# يوولسمه برخه

د زيړ ګل د دوو اونيو رخصتي په ختميدو وه، خو د کلو او باڼو د خوړ او ساده ژوند او د خپلې کوژدنې شين خالې څخه بيا لرې کيدل ورته ګرانه خبر وه ۰خو بله چاره يې نه وه ،هغه د خپل روښانه راتلونکې په هيله دا پتئلې وه چې خپلو زده کړو ته ادامه ورکړي،په همدې هيلې مازيګر يې خپل دا ړتيا وړ شيان راټول او په سفري کڅوړه يا بيک کې ځای پر ځای کړل ۰

سهار دلمانځه وروسته زيړ ګل د اکا ،کاکاناوې، شين خالې او د کلي نږدی انډيوالانو څخه خداې پامانې اودوعا ترلاسه کړه اودولايت دمرکز په نيت روان اوبيا دهغه ځايه په بس کې له څو ساعته مزل وروسته ځان د پوهنتون ليليې ته ورساوه ۰

کله چې ليليې ته ورسيد ، د خونې انډيولان او يوشمير همصنفيان يې هم دهغه تر مخه د رخصتې څخه راغلې وه چې د زيړ ګل په ليدو له ځايه پاڅيدل او دهغه سره يې تود روغبړ وکړ۰

زيړګل لمړی خپل کالي په الماری کې ځاې پر ځاې او بيا يې خپله بستره او الماري تر نظره تيره کړه او تر هغه وروسته دخونې د انډيواانو سره ددوو اونيو د رخصتيو خاطرې شريکې کړې چې د دوی دا بنډار تر ناوخته پورې دوام وکړ۰

ماښام زيړګل د سباورځې درسي مواد برابر او سها ر دخپلې پوهنځې په لور روان شو او د خپل ګروپ د نورو محصلينو سره يو ځای يې په درسونو پيل وکړ ۰

زيړګل په همدې ورځ د پوهنځې دتدريسې څانګې څخه دنوی سمستر درسي پلان ترلاسه کړ تر څو ددغه پرګرام په اساس خپل ځان عيار او ددغه فرصت څخه پوره ګټه واخلي۰

په همدې ترتيب زيړګل هره ورځ د پوهنتون په چاپيريال او محيط کې د نوو درسونو ، استادانو، سياسي او ټولنيزو مسايلو سره آشنا کيده چې په هغه وخت د پوهنتون په ساحه کې مختلف تنظمي اوحزبي فعالتونوجريان درلود او هر تنظيم کوشش کوه چې خپل صفوفو ته ځوانان جلب کړي ۰

مختلفو تنظیمونو مشخصې موضوعګیری او نظریاتو لپاره کار کاوه چې د کلوبانډو ،ولایاتو ،
مملکت او په نړۍ کې د خلکو او حکومتونو سیا ستونو په اړه هرې ډلې خپل نظریې څرګندولې ·
اکثرا دا بحثونه په وطن او نړیواله کچې د فقر ،بدبختۍ او بیعدالتۍ په مدار څرخیدل ·

یوی ډلی به د یوې سیاسي ایډلوژي څخه او بل ګروپ به بیا د بلې سیاسي موضوع ګیری څخه دفاع کوله· ددې حالت څخه داسې معلومیده چې مختلفو پارټیو او ګوندونو د ځوانانو په مینځ کې د خپلو صفوفو د تقویې په مقصد جدي کار پیل کړي وه· دا بحثونه په زړه پورې په دې وچې هر یو به په وطن کې د بدبختیو عوامل په مختلفو نظرونو کې تحلیل او ارزیابې کول او ځوانان به یې په وطن کې دیوی عادلانه ټولنې د مینځ ته راتګ په مقصد مبارزې ته را بلل او په همدې

ترتیب د خپلو علاقې وړ پارټۍ او تنظیمونو کې تنظیمول·

ځینو بیا د اسلام مقدس دین ته د خدمت په منظور او په وطن کې د اسلامي اصولو د تطبیق په مقصد خلک جهاد ته را بلل او ددې ټولو بد بختیو اصلي عامل یې اسلامي اصولو ته مراعت کیدو دلیل باله او خلک یې ددې مقدس هدف د عملي کولو په مقصد په اسلامي لیکو کې تنظیمول او کفر سره یې د جهاد نارې پورته کړی وې·

ځیني نورو بیا د مارکس او نګلس د ایډولوژۍ طرفداران وه چې هغوۍ ددې بدبختیو اصلي عوامل په وطن کې د طبقاتی ژوند موجودیت باله او داسې یې تحلیل کاوه چې موږ باید زیربنا یا اساس ته تغیر ورکړو، او په وطن کې د عادلانه او انساني ټولنې د راوستلو لپاره کار وکړو او د همدې مقصد او هدف لپاره خلک طبقاتي مبارزې ته د صلح امیزه لیارې رابلل·

ځینو نورو بیا د مارکسیستي سیاست په تاید ولو سره د قهرامیز سیاست طرفدارو چې د مایوستانو په نامه یادیدل، بلې ډلې بیا ددې ټولو بدبختیو عامل د افغانانو په عدم اتحاد کې څرګند اوه او د ټول افغان ملت یووالي او دیو موټی افغانستان د جوړولو ادعا یې کوله او خلک یې اتحاد او اتفاق ته رابلل·

په همدې ترتیب هر ورځ د پوهنتون په ماحول کې محصلینو دداسې بحثونو سره سر او کار درلود چې د ځوانانو د پاکو او سپیڅلو ،ملي ،وطني ،اسلامي او انساني احساساتو په استفادې

سره د سیاسي پارټیو صفوف ورځ په ورځ تقویه او په وطن کې د ډلو ، ټپلو ، تنظیمونو او ګوندونو
لپاره تهداب اینښودل کیده چې دیو واحد وطن ، دین او ائین خلک یې په مختلفو ګروپونو
پارټیو او تنظیمونو تقسیم او د نفاق او بدبختی کندې ته ګذار کړل۰

زیړګل د دې ټولو استدلالونو او نظریاتو د اوریدو تر څنګ د ټولو افغانانو د یو مشترک حرکت

طرفدار وه او داسې یې پتیلې وه چې ښه به داوې چې خپل درس او تعلیم ته ادامه ورکړي او ددې

لارې خپلو هیوادوالو ته د خدمت مصدر وګرځي ،نه د هغه صادرشویو ایدلوژیګانو څخه چې د
پردو په اشاره زموږ پر خلکو تجربه کیدل ۰

زیړګل ته هم لکه دوطن نورو بادرده هیوادوالو په څیر دا ناخوالې بې هیڅ نه وې خو هغه نه غوښتل
چې ځان په یوه محدوده حلقه کې شامل کړي ، هغه ددې طرفدار وه چې دټولو هغه کسانو سره چې
رښتینې احساس ولري او د پردو او صادر شوو حرکتونو په خلاف وي ښه اړیکې وساتې او هغه
دګران وطن، هیوادوالو اود وطن کلیو اوبانډو سره مینه لرله او د نیکونو تاریخې کارنامو او
لاسته راوړنو ته په درنه سترګو کتل او دغلیمانو شوم اعمال یې غندل او پدې لار کې هر ډول

سرښندنې ته تیار وه چې خپل دغه وطني احساسات یې په شعري الفاظو کې داسې زمزمه کول۰

دا مـو د خاپــــوړو کلی کـــــور دی

دا مو د نیکـــــو د تــــورې زور دی

ورک به شي غلیم چې مـخ یې تور دی

سر به ترې قربان کــړم د بـــــدن سره

مینه مـــــوږ لرو د خپـــــل وطن سره

دا وطن په مــــوږ باندی ډیر ګران دی

دا زموږه خـــــوږ افغانستـــــــان دی

هغه به د وطن ښکلې طبیعت ،باغونه او ځنګلونه په خپل شعر کې داسې ستایل ۰

لوړ چې په هــوا کې يې بازان ګرځي

هلته په ځنګلو کې يې زمريان ګرځي

جوړ په سردرو کې يې طوطيان ګرځي

مست يې بلبـــلان د باغ او بـڼ سره

مينــه مــوږ لرو د خپل وطن سره

دا وطن په مــوږ باندی ډير ګران دی

دا زمـــوږ خــوږ افغانستـان دی

اود خپلو نيکونو اوپلرونو افتخارات ، د وطن ملي شخصيتونه او دهغود کارنامو نه داسې يادونه کوله ٠

دا وطن خوشحال غوندې بچيان لري

دلتــــه کې نازو انا لمسيـــان لري

لوی احمـد شاه ستر نوم په جهان لري

ساتـو به يې شــــــاړې د چمن سره

مينــــه موږ لرو دخپـل وطن سره

دا وطــن په موږ باندی ډير ګران دی

دا زمــوږ خوږ افغانستـــــان دی

او دګران وطن افغانستــــان د مختلفو جغرافيوي موقعتونونه يې داسې ستاينه کوله ٠

وګـــــورئ هرات دی که لغمـــــان

يا که ننــــــګرهار دی که جـوزجان

پورته قـــطغن که بدخشــــــــان

غرونه يې ښه ښـــــکاري د معدن سره

مينه مو ړلرو د خپـــــــل وطن سره

دا وطن په مو ږ بانـــدې ډېر ګران دی

دا زمـــــــوږه خوږ افغانستــــان دی

د وطن هاند او ځپاند سيندونه او دريابونه او دهغو ښکلا او طبيعت ته داسې تعريف ورکاوه ۰

وايي هريرود او بــه خـــــــوږې لري

سيند د ارغنـــــداب جګې ځپې لري

ګوره د کنړ سينـــــــد څه نخرې لري

جـــــوړې ترې بيالې دی د سربن سره

مينه مو ړلرو د خپـــــــل وطن سره

دا وطن په مـــــوږ باندې ډېر ګران دی

دا زمـــــــوږه خوږ افغانستــــان دی

په آخر کې به يې د وطن د افتخاراتو او د نيکونو په کارنامو داسې وياړ او يادونه کوله ۰

دا وطـــن زمــــــوږه افتخـــار دی

دې کې مو عزمت د نيـــــکه پلار دی

دا د افغــاني کلتــــوريادګــــار دی

لاس په ګريبان ګرځـــوله د ښمن سره

مينه مو ړلرو د خپـــــــل وطن سره

دا وطن په مو ږ باندې ډېر ګــــران دی

دا زموږه خــــوږ افغانستـــــان دی

ماهم د زیړ ګل دا وطني او سپڅلي احساس په لاندی شعري چوکاټ کې پیل او تاسو محترمو لوستونکو ته یې په مینه ډالۍ کوم ۰

ګران وطن

دا مـو د خاپـــوړو کلی کـــور دی

دا مو د نیکــــو د تــــورې زور دی

ورک به شي غلیم چې مـخ یې تور دی

سر به ترې قربان کــړم د بـــــدن سره

مینه مــــوږ لرو دخپـــــل وطن سره

دا وطن په مــــوږ باندی ډیر ګران دی

دا زموږه خـــوږ افغانستــــــان دی

لوړ چې په هـــوا کې یې بازان ګرځي

هلته په ځنګلو کې یې زمریان ګرځي

جوړ په سردرو کې یې طوطیان ګرځي

مست یې بلبـــــلان د باغ او بڼ سره

مینــــه مــــوږ لرو د خپل وطن سره

دا وطن په مــــوږ باندی ډیر ګران دی

دا زمــــوږه خـــوږ افغانستـان دی

دا وطن خوشحال غوندې بچیان لري

دلتـــــه کې نازو انا لمسیــــــان لري

لوی احمد شاه ستر نوم په جهان لري

ساتو به يې شارې د چمن سره

مينه موږ لرو د خپل وطن سره

دا وطن په موږ باندی ډير ګران دی

دا زموږه خوږ افغانستان دی

وګورئ هرات دی که لغمان

يا که ننګرهار دی که جوزجان

پورته قطغن که بدخشان

غرونه يې ښه ښکاري د معدن سره

مينه موږ لرو د خپل وطن سره

دا وطن په موږ باندی ډير ګران دی

دا زموږه خوږ افغانستان دی

وايي هريرود اوبه خوږې لري

سيند د ارغنداب جګې څپې لري

ګوره د کنړ سيند څه نخرې لري

جورې ترې بيالې دی د سربن سره

مينه موږ لرو د خپل وطن سره

دا وطن په موږ باندی ډير ګران دی

دا زموږه خوږ افغانستان دی

دا وطن زموږه افتخار دی

دې کې موعزمت د نیکه پلار دی

دا د افغاني کلتور یادګار دی

لاس په ګریبان ګرځوله دشمن سره

مینه موږ لرو د خپل وطن سره

دا وطن په موږ باندی ډیر ګران دی

دا زموږه خوږ افغانستان دی

# دولسمه برخه

زیرګل ته د پوهنتون چــاپیریال د پوهې ، تعلیم او تربیې ماحول وه چــې هــره ورځ به د نوو درسي موادو او همدا رنګه د پوهې او علمیت د با کرکتره ځوانانو ، استادانو او دوستانو سره آشنا کیده

چې د هر چا ه سره به یې په پراخه تندې او ښه سلوک رفتار کاوه او همدا وجه وه چې په ډیره لږه موده کې د ډیرو مخلصو او ریښتینو دوستانو او ملګرو سره آشنایي پیدا کړه او د دوستانو په مینځ کې د ښه ادبي او اجتماعي کرکتر خاوند شو ۰

شین خالۍ هم چې د زیرګل لرې والي زورولو د زیرګل دا هیله یې عملي کړې وه چې د لیک لوست

په کورس کې ځان شامله کړی ، هغه به هره ورځ د کلي د نجونو سره د لیک لوست کورس ته تله۰

د دې کورس ښوونکې د شین خالۍ نژدې خور لنډه زرځانګه کوم چې د سواد او زده کړې مسؤلینو ته زیرګل او د کلي او سیدونکو وړاندیز کړی وه مقرره شوې وه ۰

زرځانګه کله چې د دولسم ټولګي څخه فارغه شوه ، ورسته په عــالي دارلمعلمین کې شامله شوې وه خو یو کال وروسته د یو څه ستونزو پر بنا ونشو کړای خپلې زده کړې ته ادامه ورکړي چې د سواد اموزی د کورسونو په مخکې وړولو کې د هغې ټاکنه مناسب او په ځای چانس وه د کلي ښځینه د سواد او زدکړې په کورسونو کې۰

شین خالۍ او نورو خورلنډو یې په شوق درسونو ته را تله چې په ډیرلږ وخت کې یې د الفبا د تورو سره اشنایي پیدا کړې وه او حروفونه یې یو د بل سره وصل او ورو ورو لوستل او هغو ته دا تمه او اطمینان پیدا شوې وه که د خداي رضا وي ډیر زر به د سواد او زدکړې خاوندانې شې۰

په همدې ترتیب ژوند خپل پړاو نه تیرول او پدې فاني نړۍ کې هر څوک په خپلو خولو لوند او هرڅا
د خپل خوشاله راتلو کې په هیله خپلو هلو ځلو ته ادامه ورکوله او پدې هیلو او ارمانونو کې شین
خالۍ او زیړ ګل هم د روښانه راتلونکې په هیله شپې او ورځې تیرولې ۰

زیړګل لاد خپل خپلو لوړو زده کړو څلورم کال نه وه ختم کړی چې د ژوند دنوو ستونزو سره مخامخ
شو ، هغه داسې چې اکا یې د اوږد عمر هلو ځلو ورسته چې روزګار په ملا کړوپ کړی وه نور نشو
کولای د ستونزو سره مقابله وکړي ، دهغه سن او سال او دهغه صحي حالت د اطمینان نه وه ،که څه
هم شین خالۍ او موریې څو واري طبیبانو او د ولایت د روغتون ډاکترانو ته بیولی وه خو هغه په
داسې نا علاجه مرض پروت وه چې د معالجې چانس یې کم وه چې ورسته د څوهفتو دهغه د مرګ
احوال د زیړګل تر غوږو ورسید ۰

زیړ ګل ددې خواشینې کونکې خبر د لاسه کولو سره سم د پوهنتون اداري ته لاړ اد هغو د مشورې
او اجازې وروسته ځان کلي ته ورساوه او په ډیر اعزاز او قدر سره یې د خپل تره چې د پلار حیثت
یې ورته لره جنازه جګه او د تدفین مراسم تر سره کړل او د شین خالۍ او کاکا نـاوې د راتلونکې
ژوند په فکر کې پاته شو ۰

شین خالۍ ته د پلار او دهغې مور ته د خاوند مړینه ډیر لویه ضایعه وه خـو دا هرڅه د رب کارونه
دې،  څه چې د خدای رضا وی هغه کیږې او انسانان پدې کې هیڅ نشې کولای غیر له دې څخه چې
د لوی خدای له درباره هغه او ټولو مسلمانانو ته دې د مغفرت دعا وکړي۰

زیړګل د یوه اونۍ په جریان کې د ماتم وروسته خپلو درسو ته راغــې او د پوهنتون د لیلیې پـــه
جومات کې هم د فاتحې مراسم تر سره کړل چې د پوهنتون ډیری محصلین ، استادان ، کار کونکو
او د زیړګل دوستانو  پدې مراسمو کې برخه واخستله۰

ماښام د مراسمو ورسته زیړ ګل د پوهنتون دلیلې خونې ته راغې او د شین خالۍ او د هـغې د مور
راتلونکې ژوند په فکر کې ډوب شو ۰

زیړ ګل ته دا موقه ډیره حساسه وه ،او نه پوهیده چې څه وکړي ، له یوې خوا تحصیل او د بلې خوا
شین خالۍ او کاکا ناوې او د هغو جوړ ، ناجوړ او یواځې توب ، کلی ، پوله او پټی دا هغه مسایل
وه چې زیړ ګل باید یو معقول او منطقي لاره ور ته غوره کړې وای،کله به یې له ځانه سره دا تصمیم

نیوه چې درس او تحصیل پریږدي او کلي ته لاړ شي او هلته په خپلو کروندو کې کار وکړي ، دبلې خوا د هغه دا څلور کلن د رس او تحصیل اودهغه را تلونکې دا هغه پوښتنې وې چې هغه يې تر سبا خوب ته پرې نښود او سبا په پریشانه افکارو د درس په لور روان شو ۰

زیړګل تمامه ورځ پــه همدې سوچونو کې ډوب او دحل منطقي لــیار لــټوله او هر چا مختلف وړاندیزونه ورته کول خو د شین خالۍ او اکا ناوې تنها پرېښودل په کلې کې يې ورته مشوره نه ورکوله او د يو معقول تصمیم نیول يې ورته توصیه کوله ۰

دزیړګل کله چې درسي پروګرام پای ته ورسید خپلې خونې ته را ســتون شو ،درسي کتابونه يې په الماری کې ځای پر ځای کړل او د خونې نظم يې برابر کړ او څه دمې ورسته د مازيګر د لمانځه لپاره يې تیاري ونیوله ، اودس يې تازه کړ او د پوهنتون جومات ته لاړ او د لمانځه د ادا کولو وروروسته يې لوی رب ته د دوعالاسونه جګ او داسې دوعا وکړه ۰

! پا که ربه

ته هغو ته عزت ورکوې کوم چې ستا په لارې سم وې او هغوی د ذلت سزوار دي کوم چې ریا کاران دي۰

عزت يې شي نصیب چې ربه ستا پـه لیارې سم دي

ذلـت پـــه هـــغـه چا چـــې د ریا پـــه لیارې سم دي

! پاکه خدایه

ژوند په تیریدو دي خو سرلوړي د هغوده چې ستا په پا کې ا و محمدي لارې سم وي ۰

تیــر بــږي قافلــې د زمانــې نــن او ســبا کــې

سر لوړي به وي څـوک چــې د الله پــه لیارې سم دي

! لویه ربه

تا انسانان اشرف المخلوقات پیدا کړي نو لازمه ده چې ستا بنده ګان ځانله داخرت تحفه برابره کړي ٠

انســان لــري ډیــر لــوړه مرتبــه تر بل مخلوقــه

زیبیږي ورته کــړه چــې د عقبا پــه لیاري سم دي

!الهي

زاهد په عبادت د زهد مرتبې تــه او سخي په سخاوت د ستا د زړه رضـــا حاصلول غواړي ،هغه سجدې او هغه سخاوت چې خاص ستا د رضا لپاره وي خدایه په خپل دربار کې قبول وګرځوې ٠

زاهــــد پــــه عــبادت رسي دزهـــــد مرتبې تــــه

سجــدې یې شې پخې چــې درضا په لیارې سم دي

سخي پــه سخاوت بانــدي حاصل د زړو رضا کړي

منـلی بـــه وي څوک چې د سخاپــه لیارې سم دي

الهي!

ژوند عبث تیرول متاع نلرې او موږ ته دا وس او توان راکړې چې دعمر تر پایه د مصطفی ص دپاکې او سمې لارې پیروان او صادقه مومنان وګرځو .

ژونـدون هسې عبـث چې تیروي متاع یـــې څـــه ده

پیـــرو د سمې لیار د مصطفی پـــه لیارې ســـم دي

لویه ربه!

ستا دربار ته مې ددوعا لاسونه جګ کړي چې زموږ مړي وبښه او موږ ته دا توان راکه چې د ژوند په ستونزو کې ستا د رضا او ترحم نه همیش برخوردار اوسو .

درګا تـــــه دي الله زه افغانـــــي لاس پـــــه دعا یـــم

مطلب ته رسـي څوک چــې د دعا پـــه لیارې سم دي

د زیړګل دزړه سپیڅلې هیلې د پاک رب په دربار کې په لاندې نعتیه شعر کې محترمو لستونکو ته ډالۍ کوم .

## سمه لیار

عزت یې شي نصیب چې ربه ستا په لیارې سم دي

ذلت په هغه چا چې د ریا په لیارې سم دي

تیرېږي قافلې د زمانې نن او سبا کې

سرلوړي به وي څوک چې د الله په لیارې سم دي

انسان لري ډیر لوړه مرتبه تر بل مخلوقه

زیبېږي ورته کړه چې د عقبا په لیاري سم دي

زاهد په عبادت رسي د زهد مرتبې ته

سجدې یې شي پخې چې د رضا په لیارې سم دي

سخي په سخاوت باندي حاصل د زړو رضا کړي

منلی به وي څوک چې د سخا په لیارې سم دي

ژوندون هسې عبث چې تیروي متاع یې څه ده

پیرو د سمې لیار د مصطفی په لیارې سم دي

درګا ته دي الله زه افغاني لاس په دعا یم

مطلب ته رسي څوک چې د دعا په لیارې سم دي

# دیارلسمه برخه

زیړ ګل ورو سته له ډیر غور ، دملګرو دخر ګندونو او مشورو څخه دې پایلې ته ورسید چې د اکا د مړینې وروسته به په کلي کې د شین خالۍ او د کاکا ناوې یو ازې پریښودل سمه خبره نه وي ،همدا وجه وه چې دا یې وپتیله چې د پو هنتون لیلیه پریږدي او د پوهنتون په نژدې سیمو کې کرایي کور پیدا کړي او خپله کوژدنه شین خالۍ او د هغې مور د کلي څخه راولي او دلته نوی ژوند پیل کړی تر څوله یوې خوا خپلو زده کړو ته ادامه ورکړي او له بلې خوا شین خالۍ او د هغې د مور څخه مطمئن شي او د ژوند په ستونزو او خوښیو کې دهغو څخه له نژدې نه څارنه او لاس رسی وکړي ۰

زیړ ګل سره پدې برخه کې دهغه دوستانو په تیره بیا دخونې ملګرو ډیرې مرستې وکړي ،کرایي کور یې ورته پیدا کړ او دکلي څخه د کور په کډه او د اړتیا وړ توکو په انتقال کې پوره لاس ورکړ ،هغه داسې چې داونۍ په آخرو رخصتیو کې یې یو لوې بس موټر په کرا کړ او د زیړ ګل سره یو ځای کلي ته لاړل او د هغو بار او بستر او داړتیا وړ توکي یې راټول او په بس کې ځای پر ځای کړل او همدا رنګه د دهقان او زیړ ګل په مشوره دهقان یې د زیړ ګل دو ی کلا ته کډه کړ تر څو د ځارویو ، ځمکو او کلا څخه ځارنه او سرپرستې وکړي ۰

کله چې د زیړ ګل کډه بار شوه ،دکلي او سیدونکې زاړه ،ځوانان ،ماشومان او د شین خالۍ خور لنډې بې مخه ښې او خدای پاماني ته راغلې وې ، د کلي خلک د هغو په جلا کیدو ډیر خواشینې

او خفه شوي وه او د حسرت او ښکې یې تر سترګو تویدلې ،خود شین خالۍ خورلنډو او یو شمیر

د کلي ښځو بیا په چیغو چیغو ژړل چې په رښتیا سره دکلي والي ساده او بې الایشه ژوند ، دزړونو پاکوالی او د صداقته ډکه فضا پداسې حالت کې د ورایه په سترګو کیده ۰

شین خالۍ او موریې د دوستانو سره د خدای پاماني غیږې ورکړې او په غمزپلي او د تاثره ډک حالت کې بس ته وختل او د مرکز په لوربې حرکت وکړ او د کلي خلکو د تبرک په دو د ددوی د امن په دعا په دودیزه توګه سپینې او روښې او به په هغو پسې وشیندلې ۰

شین خالۍ او مورته یې په اوله کې ښاري ژوند ستونزه مند وه ، هغوی کلي او ښاري ژوند تفاوتونه له نژدې احساسولې ، دلته نور د کلا د انګړ په څیر د تنور لمبې نه ځګیدې او د شین خالۍ خور لنډو هغې ته د خمیره شوو اوړو ځغالې نه برابرولې او نه شین خالۍ په تنورکې د ډوډې د پخولو لپاره سر په پوړنې تړه بلکه خوړې ډوډۍ یې نژدې د ډوډۍ پخونې هټۍ څخه رانیولې ۰

دلته نور د کلو خلکو سره د شیروار لپار د کتې وهلو حاجت نشـــته وه او نه د لوشلشوې غوا شدې په نغري ویشول کیدې ، دلته هر څه د کلو څخه راتلل او نژدې هټیوالو مستې او شدې د خرڅلاو لپاره لرلې ۰

دلته نور د دامان ځمکو ته د هر قسم سبولکه ورخاړی، لیچی ۰ څارمی ،اخنک ، غنم رنګی ، تازه شوتلو او ترکاریو راټولولو حاجت نه نشته وه ، د لته هر رنـــګ میوې ترکاري او حـــبوبات د نژدې پلورنځیو څخه تر لاسه کیدې ۰ دلته ښارې ژوند ځانله ډیرې اسانتیاوې لرلې خود کلي ازاده هوا او فضا او کلیوالې ژوند او خوند بیا کمرنګه وه ۰

شین خالۍ او مور یې ورو ورو د ښارې ژوند سره اشنایې تر لاسه کوله ، اوس نور نو زیړ ګل ته حاجت نه وه چې د درس څخه وروسته کور ته خرڅ راوړې بلکه شین خالۍ خـــپله د بازار څخه د اړتیا وړ مواد را نیول ۰

شن خالۍ او مور یې ځانله نوي دوستان پیدا کړي وه او د ګاونډیانو سره یې راشه درشه لرله خو دا راشه درشه د کلی په پرتله تر یوه حده بله بڼه اورنګ درلود ۰

په همدې ډول زیړګل خپل تحصل تر شپږم کال او بـــیا یو بل کال چې هغه هم د پرکتیک یا عملي

ډاکتري دوره وه د خپل کوژدنې او کا کا ناوې سره په مـــر کز کې تیر کړل چې بیا زیـــړ ګل پس له پرکتیک او عملي دورې نه له ډیره زحمتونو او کړاونو سره په ډیر متا نت او پـــه لوړه کچه د

طب د پوهنځي د فراغت دیپلوم تر لاسه کړ ۰

زیړګل تر فراغت ورسته د کاکا ناوې سره په مشورې دې نتجې ته ورسیـــدل چې د خپلي کوژدنې شین خالۍ سره دواده مراسم په خپل کلي کی په شور او شوق د دوستانو او عزیزانو سره یو ځای تر سره کړي چې په همدې مقصد دوظیفې د ځای تر ټاکنې پورې کلې ته راغلل تر څو په خپل کلې کی د واده تیاری ونیسي ۰

کلي ته په رسيدلو د کلي د اوسيدونکو سره د روغبړ وروسته زيړ ګل ،شيـن خالۍ او مورو يې د کلي هديرو ته لاړل ، د اکا او ټولو مسلمانانو روح ته يې ددوعا لاسونـه جګ او د لـوی خدای له درباره څخه يې هغو ته د فردوس جنت هيله وکړه او تر هغه وروستـه په خپـلو ځمکو او کروند و وګرځيدل او د لوي خدای شکران يې ادا کړ چې بيا ورته دا موقع برابره شو چې بيا په خپلوځمکو ، کلو او باندېو راغلل او کليوالی ژوند د نعماتو څخه برخه مند شول .

زيړ ګل ، شين خالۍ او مورته يې د کلي اوسيدونکو د هغو بيرته کلي تـه د راستنيدو په ویاړ په وار سره ميلمستياوې جوړې کړې او هغوی يې ونازول .

يوه اونی وروسته زيړګل ، کاکا ناوې ، شين خالۍ او خورلنـډې يې د کلي ديوشمير نور دوستانو سره د ولايت بازارته د واده د خريد په مقصد لاړل او ترناوخته يې هغه د واده ضروري شيان راونيول کوم چې زيړ ګل او کاکا ناوې د مخه په لست کې ياداشت کړې وه خو د هر ټوکي په خريد کې د شين خالۍ او د هغې د خورلنډ خوښه حتمي وه .

کله چې زيړ ګل دواده ټوکي کورته ورسول نو د نيکه بڼ ته لاړه او د بڼ په صوفه کې خبل څادر هوار کړه او د څو شيبو د ارام په هيله سر په تيګه کيښود او د کلـيوالي ژوند ، خوند او دوستانو سره

د ټنګ ټکور په اړه يې داسې زمزمه تر خولې ووتله.

محـفـل چې د يارانو ټنګ ټکور سره مزه کا

خوښي او خوشحـالي د کلي کور سره مزه کا

زيړ ګل چې د شين خالۍ تل خاطر ساته ، د هغې د جګې پوزې د چارګل ښکلاه داسې ستايله.

پروا مـې د اشنا پـه ځان منـلې ده نو ځکه

ليلاخيالي چارګل په پزې سپور سره مزه کا

هغه دژوند او د ژوندانه کار ،زحمت اوستړیا داسې تعریفوله ۰

د ژوند په اوږدو لارو منزلونو اوستړیا کــې

دا ټول جار اوجنجال بیا د زړه زور سره مزه کا

زیړګل په ژوند کې د یو تحرک ، شور او شوق په اړه داسې ویل ۰

څوک ناست دی غمازي کا څوک دښکلو سودا ګردی

د ا ژوند اوکارو بارېې شوق اوشورسره مزه کا

او دخپلې شین خالۍ د قد ، قامت او ښکلا داسې زمزمه کوله ۰

ځواني چې مې دیارقد او قامت سره ښکلا ده

خالــونه یې په مخ کې دري څلور سره مزه کا

او په اخرکې یې دخپل مینې شین خالۍ په لیدو د هغې په اړه داسې اظهار کاوه ۰

دیدن ته چــې د یار په افغاني وعده ورځمه

سور شال یې پلو داره په سر خور سره مزه کا

دزیړګل دزړه زمزمې او شاعرانه دا احساس په لاندې غزل کې د شعر اوادب مینه والو ته ډالۍ کوم ۰

غــزل

محــفــل چې د یارانو ټنګ ټکور سره مزه کا

خوښي او خوشحـــالي د کلي کور سره مزه کا

پروا مـــې د اشنا پـــه ځان منـــلې ده نو ځکه

ليلا خيالي چارګل په پزې سپور سره مزه کا

د ژوند په اوږدو لارو منزلونو اوسترړيا کـــې

دا ټول جار او جنجال بيا د زړه زور سره مزه کا

ځوک ناست دی غمازي کا څوک د ښکلو سودا ګردی

د ا ژوند او کارو بارېې شوق او شورسره مزه کا

ځواني چې مې ديارقد او قامت سره ښکلا ده

خالـــونه يې په مخ کې درې خلور سره مزه کا

ديدن ته چـــې د يار په افغاني وعده ورځمه

سور شال يې پلو داره په سر خور سره مزه کا ۰

# ځوارلسمه او ورستی برخه

ډاکترزیړګل دواده لپاره پوره تیاري نیولې وه ،هغه د کاکا ناوې په مصلحت د حاصلا تود زیرمو
دخونې څخه د واده دا ړتیا و ړوریــجې، اوړه اونورې غلې، دا نې دبزګرپه مرسته دتللوورو سته
اشپزې ته سپارلې وې او همدا رنګه د خپلو ځـارویو څخه یې  توربخن سخوندر او یو ترکی ورې
حلال اوغوښه یې د پخولو لپاره برخې برخې کړې وه ۰

هغه د واده کارتونه د کلې د نائې په لاس نژدې او لرو دوستانو ته لیږلې وه او هم د ښځینه میلمنو

لپاره یې د زرلښتې دپلار لعل میر آکا کورچې په ګاونډ کې وه فرش او سمبال کړی وه او همدا رنګه د
نارینه میلمنو لپاره یې د آکا  په بڼ کې چیرته چې د پخلي  کارونه هم ترسره کیدل ځاې برابرکړې وه
او د ټنګ ټکور لپاره یې مشهور سندرغاړې ګل محمد استاد چې په منطقه کې د پوره شهرت
خاوند وه د محلي سند ر غــاړې سړ ه چې په ګلرنګ مشهور وه بیانه کړې وه او دکلا بهر یې ورته
ځای په ګلمونو ، توشکو او کټونو سمبال کړې وه ۰

مازیګر میلمانه ورو وروپه راتلو پیل وکړ چې د ډاکتر زیړګل او د کلې اوسیدونکو به ورته هر کلی
وایه او سمبال شوې ځای ته به بدرګه کیدل او هلته د هغو د ناستې سره سم مؤظفو کسانو به د لاس
پرمینځلو او به راوړلې او د ډوډۍ سررشته به ورته ونیول شوه ۰ کله چې به میلمنو ډوډۍ نوش جان
کړه تر هغه وروسته به د ټنګ ټکور  ځاې ته بدرګه کیدل او هلته به د چاې ، اوبو او چلم تدابیر ورته
نیول کیده او مؤظف کسانو به د میلمنو خیال ساته ۰

څه شیبې ورسته د میلمنو د خوښې لپار سازیان راغله ، ګلکې استاد او ګلرنګ سره آرمونیې تر
غاړې کړې او مستې بګتۍ ، چاربیتې او داستانونو په ویلو سره د حاضرینو له خوا په چک چکو
بدرګه کیدل ۰

د واده مراسم تر ناوخته دوام درلود ، هلته د زرڅانګې پلار لعل میر آکا په کور کې چې د ښځینه
میلمنو لپار تیاري نیول شوی وه، د شین خالۍ د واده مراسم هم هلته تر سره کید ل ، چې د شین

خالې خور لنډو د کلی ښځواونژدي دوستانو سره ددا ریا په وهلو ،سندرو او نڅا محفل ته خوشاله ښه ورکړې وه ۰

په همدې ترتیب ټنګ ټکوردشپې تر ناوخته دوام وکړ، دنژدې کلیو میلمانه ورو ورو په رخصتیدو شول ۰

سبا د چای اوسبا نـاري وروسته د کلی ملا ، سپن ګیری، نـژدی دوستانو او مشرانو په ګډون د ډاکتر زیړګل او شین خالې نکاح د اسلامي اصولو سره سم وتړله چې دنکاح ورسته د دوستانو له خوا ډاکتر زیړګل ، شین خالې او مور ته مبارکی وویل شوه ،حاضرینو په ناوی او ډاکتر زیړګل نقل ، پتاسې او میده پیسې وشیندلې. او سازیانو بیا خپل ټنګ ټکور تـه ادامه ورکړ چې د کلې فضا د خوښی او خوشالې فضا ګرزیدلې وه ۰

مازیګر ځوانانو ډولې جوړه کړه او دلعل میر آکا کورته لاړل او ورسته له یو لړ مراسمو شین خالې په ډولی کې سپره او خپل پـلارني کورته د ساز ، سندر او خوشحالیو په بدرګه راوستله چې په همدې تریب ډاکتر زیړګل او شین خالې پس له کلونو زحماتو او کړاونو خپل پاکو هیلو او ارمانو ته ورسیدل ۰

د شین خالې او ډاکتر زیړګل لا د واده شپږ میاشتې نه وې تیرې شوې چې په هیواد کې د پردو مداخله ګرانو او کورنۍ خرخ شوو د افغا ن او افغانیت دښمنانو زموږ د بې ګناه خلکو په کلو او بانډوداسې لوبې او محشر جوړ کړ چې زموږ ډیر بې ګناه خلک بې شهیدان ، معیوب او د وطن څخه بې ا جبار ي مهاجرتونو ته اړ باستل چې زیړګل ، شین خالې او د کاکا ناوې هم ددې ناتار

په پایله کې ګاونډ ملک ته مها جر او د افغانانو په کمپونو کې هستوګن شول۰

ډاکتر زیړګل اوشین خالې ته پس له څو میاشتو په مهاجرت کې خداې یوه لور په نصیب کړه چې ښایسته نوم یې پرې کیښود او ښایسته لکه دخپل مور شین خالې ښکلې نجلکې وه۰

زیړګل ته د ا د کمپونو ژوند لکه د کمپ نورو او سیدونکو افغانانو په شان د کړاوه ډک ژوند وه او پس له ډیرو اندیښنو دې پایلې ته ورسید چې په هرډول وې ځان له دی بدحالته وباسې چې پس له ډیرو هلو ځلو زحمـت او کړاونو د خپل لـور ،شین خالې اوکاکا ناوې سره ځان اروپایې هیواد ته

ورساوه چې ورسته له ډېرو پښتنو ، منډو او رامنډو ورته د اقامت یا اوسیدنې اسناد او اجازه ورکړل شوه .

ډاکتر زیړګل اوس په اروپا کې ډاکتر نه بلکه په یو رستورانت کې په مشقته کارو بوخت او د مهاجرت شپې او ورځې سبا کوي .

د تأسف خبره خو داده چې زموږ ډیر شمیر هیوادوال د پوهې ، تعلیم او د مسلک خاوندان چې په وطن کې د ملت په مصرف د پوهې او مسلک رتبې ته رسیدلي دي په غیر مسلکي او شاقه کارونو بوخت دي چې د ډاکتر زیړګل او شین خالـي د ژوند کیسه د دې خبرې یوه ژوندۍ او وړه شانې بیلګه ده .

زیړګل په مهاجرت کې د کار او زحمت تر څنګ د خپل پولې ، پټې او کورچې د وخت زورواکانو ترې غصب کړې وه په شاعرانه احساس داسې یادونه کوي .

زمـوږ د کلـي هغه کور

هغه ختین دیوال کې لور

هـا نغری د لرګـو اور

چا رانه واخسته په زور ؟

هغه د خپل د کلي د کور ماحول داسې تمثیلوي .

د کور په مینځ کې وه بیاله

هـا د انګـورو ښه چیله

پکې يو ښکلې شان حجره

اوس بې احتياج کړلو د نور

چـــا رانه واخسته په زور؟

د کلا د باغچې او حجرې په اړه تير وختونه داسې يا دوي٠

ښکلې باغچــه د ميلمنو

د خــــنه ورو شـــا ځلمو

وه د خوښۍ او بدو شپو

اوس راته پاته دی پيغور

چـــا رانه واخسته په زور ؟

او د لوټمارو چور او چپاول د دوی په کو ر او هستي داسې بيان کوي٠

چا ترينه ويوړې دروازې

هم بې کرکۍ ماتې ښيښې

نـــې د تنور خــــيژي لمبې

اوس لوټې لوټې دی نسکور

چـــا رانه واخسته په زور ؟

او خپل د مهاجرژوند  راتلونکي ته داسې د شک په سترګو ګوري٠

يمه مــــحتاج د بل وطن

نه مې شته کورنه مې مدفن

وي بــــه د هجـــرځانکندن

مات زړونه خنګه شي ټکور

چـــا رانه واخسته په زور ؟

زيړګل دلوی خداې په دربار کې د دعا لاسونه اوچت او دا دوعا وکړه

ربــــه موږ ستا يو بنده ګان

له تـــانه غواړو موږ امان

يو زوريدلـــي په بد شان

که ته زموږه شـــي غمخور

چـــا رانه واخسته په زور ؟

او په آخر کې بې د وطن د آبادي او سولې لپاره داسې هيله وکړه ٠

چـــې ګران وطن موشي آباد

دغــه غمجن زړونه شي ښاد

د ســــره جـــوړ شي دا بنياد

افغاني بيا شـــوکـــلی کور

چـــا رانه واخسته په زور ؟

درنو لوستو نکو ته د زيړګل دزړه خبرې زموږ دکلي هغه کور تر سرليک پهلاندې ډول ډالۍ کوم ۰

## زموږ دکلي هغه کور

زمـــوږ دکلي هغه کـور
هغه ختين ديوال کې لور
هـــا نغری د لرګـــو اور
چا رانه واخسته په زور ؟

دکور په مينځ کې وه بياله
هـــا د انګـــورو ښه چيله
پکې يو ښکلې شان حجره
اوس بې احتياج کړلو دنور
چـــا رانه واخسته په زور؟

ښکلې باغچـــه دميلمنو
دخـــنه ورو شـــا ځلمو
وه د خوښۍ او بدو شپو
اوس راته پاته دی پيغور
چـــا رانه واخسته په زور ؟

چا ترینه ویوړې دروازې

هم بې کرکې ماتې ښیښې

نــــې د تنورخــــیژي لمبې

اوس لوټې لوټې دی نسکور

چــــا رانه واخسته په زور ؟

یمه مــــحتاج د بل وطن

نه مې شته کورنه مې مدفن

وي بــــه د هجــــرځانکندن

مات زړونه خنګه شي ټکور

چــــا رانه واخسته په زور ؟

ربــــه مورِ ستا یو بنده ګان

له تــــانه غواړو مورِ امان

یو زوریدلــــي په بد شان

که ته زمورِه شــــې غمخور

چــــا رانه واخسته په زور ؟

چې ګران وطن مو شي آباد

دغه غمجن زړونه شي ښاد

د سره جوړ شي دا بنیاد

افغاني بیا شو کلی کور

چا رانه واخسته په زور ؟

AFGHANNANG@HOTMAIL.COM